

# څرک

اتم کال اتمه ګڼه – پرلپسې ۷۲ ګڼه – مرغومی ۱۳۹۱ل، محرم – صفر ۱۴۳۴ق – دسمبر ۲۰۱۲م

دغور ولایت زیاتره سیمې دمجاهدینو تر ولکه لاندې دي

## سال ۲۰۱۳م و مسؤلیت های آینده افغانها

## افغانستان کې دامریکایانو اقتصادي ماتې

## ۲۰۱۲ کال دمجاهدینو دسیاسي اوپوځي سوبو ستري ورځې لرلي

## دکابل دامریکایی رژیم مشروعیت.....

## آیاممکن است اسلام ازطریق نظام انتخاباتی نافذگردد ؟

جامع المنقول والمعقول مولوي فضل الرحمن پکتیاوال (رح)

## دادی دلویدیځ انصاف اوبشردوستي ؟!

# څرک

## علمي ، فرهنګي ، ټولنیزه اسلامي خپرونه



اتم کال اتمه ګڼه – پرلپسې 72 ګڼه – لینډۍ - مرغومی 1391ل، محرم-
صفر1434ق- دسمبر2012م

**امتیاز:**

دامتیازخاوند: دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر: عبید تنویر

لیکوال پلاوی: ډاکټر صابر، حمید، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګڼوت:**

افغانستان: 180 افغانۍ

پاکستان: 240 کلدارې

امریکا: 60 ډالره

اروپا: 60 یورو

یوه ګڼه: 15 افغانۍ 25 کلدارې

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

**پته:**

تخنیکي چارې: عابد مجاهد

کابل: دڅرک دفتر

srak_111@yahoo.com

سرلیک

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# ۲۰۱۲ کال دمجاهدینو دسیاسي او پوځي سوبو سترې ورځې لرلې

په تیر میلادي کال کې داشغالګروځواکونو اوددوی داجیرانو په مقابل کې دافغانستان اسلامي امارت روانه برحقه مبارزه اومقدس جهاد، لوی اومتعال رب (جل جلاله) خپلې هغې مرحلې ته ورساوه چې هم په پوځي میدان کې داشغالګرو په ژاموزرګونه ګوزاونه اوپریکنده حملې وشوي او په زرهاوو تلفات یې لرل اوهم په سیاسي ډګر کې چې دپاریس اوچاپان ناستې یې ښکاره مثالونه دي هغو له شک پر ته نړۍ ته داسلامي امارت سیاسي نبوغ، معقولیت اوځواک نوربرالااوثابت وګرځاوه

که امریکایانواوددوی په ډالروخرخیدونکي میډیاهرڅومره ووایي چې دامریکایي عسکروتلفات د ۲۰۱۲ کال په اوږدوکې سوونه تنه وو، داادعاوي ځکه سراسر دروغ اوبوساختګي ارقام دي چې دامریکایي ورځپاڼې وال سټریټ ژورنال په وینا د تیر کال په می میاشت کې په امریکایانو ۳ زره حملې شوې وې چې په دې بنیاد په درست کال کې په دوی دحملو شمیر تر ۳۰ زروزیاتیږي، که امریکایان اوددوی په خدمت کې څرخیدونکي میډیادمجاهدینو هرې حملې په نتیجه کې دڅلوروپنځوعسکرومرګ اوژوبله نه مني حداقل خوبایدد یوه عسکرمرګ اویوه ټپ ارومرو ومني اوکه داهم نه مني نوبیابه لمر په دوګوتوپټول غواړي، مګر په مجموع کې حقیقت دادی چې په تیر کال دجهادي بریدونو د ډیربښت او قوت له امله دوی ته تر پخواهر کله ډیر ځاني او مالي تلفات رسیدلي دي.

ددې ترڅنګ تیر کال دمجاهدینو دپوځي اوتکتیکي پلانونو او هدفمندوحملوپه نتیجه کې دافغان ولس لپاره دپام وړزیری داوه چې امریکایانو په خپله ومنله چې ۳۰ زره تنه جګړه مار عسکر یې له افغانستان څخه تبنتیدلي دي، مګر په حقیقت کې شاید د تبنتیدلو او بیر ته ستنو شویو امریکایي پوځیانو شمیر تر دې زیات وي ځکه دافغانستان په مختلیفوولایاتو کې زیاتره سیمې په مطلق ډول له امریکایي اشغال څخه ازادې شوي دي، دارنګه په تیر کال کې دفرانسې هیواد خپل ټول عسکر اوقوتونه له افغانستان څخه وویستل، نیوزیلنډهیواد خپل زیاتره پوځیان وویستل او دیومخیزې تیښتې خبره یې وکړه، بلژیک هم خپله بستره وتړله اوترټولومهم داچې برتانیې اعلان وکړ چې نور دافغانستان دجګړې له لمبواودروندبار څخه ځان باسي او خپل عسکر باسي

له بل پلوه ۲۰۱۲ کال په سیاسي میدان کې دمجاهدینو لپاره هم له لاسته راوړنو ډک وو، چې دچاپان دتوکیو په ښار اودفرانسې هیوادپه پلازمینې کې جوړوشوویبلابیلو نړیوالو کنفرانسونو ته داسلامي امارت داستاځودعوت اوپه واضحوټکو دافغانستان داشغال دپای ته رسیدوپه اړه موقف اووېناوي هغه سیاسي بریاوي وې چې له شک پر ته یې دامریکااوناټو د تیر ۱۲ کلن اشغال ټول جنایتونه په ډاګه اودهغوګردې شیطاني لومې که هغه دبیارغونې، نظام جوړونې، بشري حقوقو اویادجرګواومرکوپه نامه یې وخت په وخت طرحه اوترسره کړې وې بندپه بند ښکاره اونړۍ ته یې داخبره ورپه ګوته کړه چې په افغانستان کې د تیرو ۱۲ کلونوپه اوږدو کې اشغالګرو صرف شعارونه ورکړي اوبل یې مظلوم افغانان وژلي !!!

مونږ اشغالګرواوددوی لاسپوڅوته وایو: ستاسې ټول ځواک په افغانستان کې وازمویل شو، دوحشت اوبربریت هره وسله اووسیله مواستعمال کړه، دتفرق اوشیطاني چالونوبې شمیره حربې موو کارولې اوپه تریلیونوډالرموولګول، خونتیجه یې تاسې د ۲۰۱۲ کال په اوږدوکې ولیده چې سیاسي اوپوځي فتحې اوسوبې الله تعالی په مجاهدینولوورولې، نوښه داده چې لدې ورسته دیوې لحظې لپاره هم نور په افغانستان کې دخپل اشغال اووحشت غځولوسوچ ونه وهئ، ځکه په ۲۰۱۳ کال به ستاسې په وړاندې افغانستان داسې یوه څمکه وي چې په انسانانواوګړوسربیره به بوټي اوکاڼي هم په تاسوخپل زړونه یخوي اوګوزارونه به درباندي کوي (انشاالله تعالی)

# افغانستان کې دامریکایانو

# اقتصادي ماتې

«شاهد»

دزاړه امپریالیزم یا پانګه وال نظام پالونکې امریکایان دخپلو نورولویدیځوحلیفانوپه څیرافغانستان کې دپوځي شکست ترڅنګ له سخت اقتصادي بحران سره مخ دي ،اوهره ورځ په لکونو ډالره زیان زغمي ،غربیان او په سرکې یې امریکایان چې خورا دخپلو شتو او پوځي ځواک د درلودلو په سبب ترې دنړۍ چیچونکې ماران جوړ شوي اوبې اسرې ولسونه ترې ترپوزې پورې راغلې ،نن دادی دافغان جهاد له برکته دخپل ځواک په هرډګر کې له ماتې سره لاس وګریبان دي اوددوئ دځواک دړومبي عنصرپه توګه یې مادي پانګې دومره زیان لیدلی چې کلونه کلونه پس به یې هم تلافي ونکړای شي اوکه دلوی خدای رضا وه دسوال له کچکوله به هم په اسانۍ خلاص نشي !

ددې سربیره چې دافغانستان غوندې به یې دنړۍ دیوه هیواد ه هم دطلاوو اومعدنیاتوپه غلا اوغصب اسره نوي کړي او څه چې یې له وسې شوي وی خپل هیوادته به یې په پټه اوښکاره تښتولې وي ،خوددوئ هغه اټکل شوي مادي خساره چې دافغانستان په جګړه کې لیدلې ده دتدارک له پوړیولوړه ده .

نن چې له خیره دامریکایانواو اشرباڼو کډې یې په باریدو دي اودخپل زاړه حریف (شوروي اتحاد)له برخلیک سره دوئ هم مخ دي اونوره یې دلته وړۍ نه شړۍ کیږي ! دامریکاحکومت دمحاسبې ادارې هم نورخپل لګښتونه له نړۍ پټ نکړل او خپل ټول تېر هغه مصارفات یې وښودل چې په تیرونږدې لسو کلونو کې یې پر خپل شکست خورده !! پوځ هیواد کې کړي او هم یې دهغه مصرف تخمیني اندازه اعلان کړه چې ددوئ دتیښتې پر وخت به یې د ټولوهغو وسایطو په انتقال چې مجاهدینوتخریب کړي یا روغ دي او دوئ نه غواړي چې دروسانوغوندې یې دشکست آثار دلته پاتې شي او دسیالانیانودخند اشي ولګیږي !

دې ادارې وویل چې تیرو کلونو کې یې پر پوځ ( ٦٠٠)ملیارده ډالره مصرف شوی اوپنځه ملیارده او اووه سوه میلونه ډالره لګښت راځي ، دواشنګټن پوسټ ورځپاڼې په باوردعراق په نسبت به له افغانستانه دوسایطو بیرته وړل له ستونزوډک وي ځکه هلته دخلیج دبحر ساحل او دلته ساحل نشته او هلته دسیمې نورمال حالت خو دلته دپیچلوجیوپولیټیکل یا سیاسي جغرافیه له کبله مشکلات ډیر دي .

د امریکا د حکومت د محاسبې ادارې په یوه تازه راپور کې له افغانستانه د امریکادپوځي وسایلو د ایستلو پر ستونزو او لګښت رڼا اچولې ده.

په دې راپور کې، چې واشنګټن پوسټ ورځپاڼې خپور کړی، له افغانستان او عراق څخه د امریکا د پوځي وسایلو انتقال پرتله شوی او ویل شوي چې امریکا په افغانستان کې د عراق په شان ساحلي بندر نه لري او له همدې کبله به له افغانستانه د تجهیزاتو ایستل یو بل لوی مصرف وي.

د امریکا حکومت په تېرو لسو کلونو کې په افغانستان کې پر خپلو پوځیانو نږدې شپږ سوه ملیارد ډالره لګولي دي.



واشنګټن پوسټ ورځپاڼې په وینا له دې سره سره د افغانستان عملیات د امریکا لپاره د عراق تر جګړې هم ګران تمامېږي .

د دې ورځپاڼې له مخې په داسي حال کې چې د اوباما حکومت او کانګریس د دولت د عوایدو پر زیاتېدو او د مصرفونو پر کمولو بحثونه کوي چاره نشته چې له افغانستانه د پوځیانو پر ایستلو له لګښته لاس واخیستل شي.

په دې پیسو به راتلونکې میاشت هغه مهال غور وشي چې کانګریس د پور د حد له زیاتېدو سره مخامخ شي.

**په همدې منځ کې د امریکا د حکومت د محاسبې د ادارې د راپور له مخې د امریکا دفاع وزارت اټکل کوي چې د امریکا پوځ په افغانستان کې تر اووه نیم لکه زیات وسایل لري چې تر ۳۶ ملیارد ډالره زیات ارزښت لري. د دوی په وینا په دغو وسایلو کې نژدې پنځوس زره نقلیه وسایط او تر ۹۰ زره زیات کانتینرونه شامل دي.**

په ۲۰۱۱ میلادي کال د امریکا ترانسپورټ په لکونو ټنه ( ۲۶۸۰۰۰) مواد د اروپا او منځنۍ اسیا له لارې افغانستان ته ولېږل.

په راپور کې ویل شوي چې له عراقه د امریکایي پوځیانو وتلو وښودله چې د تجهیزاتو په ایستلو باید بیړه وشي.

په افغانستان کې د سمندري پلیو ځواکونو قول اردوګانو په ۲۰۰۹ کال او پوځ په ۲۰۱۰ کال وتلو ته تیاري پیل کړ.

د امریکا د محاسبې د ادارې په راپور کې ویل شوي چې له افغانستانه د وسایلو د ایستلو د ستونزو یادونه هم شوې او ویل شوي چې د سیمې د پېچلي جیوپولیټکل یا سیاسي جغرافیې له کبله هم له افغانستانه د وسایلو ایستل اسانه د عراق په شان اسانه او ارزانه کار نه دی.

په عراق کې امریکایي پوځیانو ساحلي بندر درلود او بل ډېر وسایل یې په ګاونډي کویت کې خپلو ه ډوته یووړل او ځیني یې له کویت او اردن څخه د اوبو له لارې انتقال کړل .

دشننونکیوپه آند دابه دامریکا لپاره یوملاماتونکی ګوزاروي چې ډیره موده پس به یې هم په اسانۍ سره تلافي ونکړای شي ،خوزیات امریکایان به پدې اندیښمن وي چې ددومره لوړمصرف سربیره بیاهم دومره سترمادي طاقت ونکړای شول چې افغانستان کې دځان په ګټه ثبات راولي او خپل لاسپوځی حکومت پر ولس ومني، بلکې زیات پوځي تلفات او اقتصادي ځوړتیادامریکا هغه مقدر دی چې امریکایان یې ایستلوته اړیستل او دشوي ژمني له مخې به تر راتلونکې 2۰۱۴ کال پورې پوځي ماموریت پای ته ورسوي .

دسیمې کارپوهانواو دګڼوهیوادونومجربو ثیرو لاپه لومړیو کې امریکایانوته پرله پسې مشوره ورکوله چې دې هیوادته ننوتل اسان خو بیرته وتل ترې سخت دي ! مګرسرتمبه ډبلیوبش اویهودي مشاورینوداړول خبرې خندنۍ ګڼلې او خپل پوځي زوریې ترمعنوي هغې هم اوچت باله ، چې دادی دوخت عبوراومرور وښوده چې داهرڅه رښتیا او افغانستان خارجیانوته هغه قبرستان دی چې ډیرې سترې امپراتورۍ پکې ویلې شوي او لاهم دمرګ په خوب ویدې دي .

اوس چې دامریکایانوبیړۍ ډوبیدوپه ساحل ولاړه ده اودپوځي هغې غوندې یې داقتصادي ماڼۍ برجونه دړنګیدوپه حال کې دي ،دخپلوو تلومسالمت آمیزه لاره یې ورکه کړې او داوبو اخستې انسان غوندې څګ ته هم لاس اچوي ،دوست هیوادونه یې پدې لټه کې دي چې دوتلو یوه ابرومندانه لاره ورته وموسي او دوړو پوزه ورته کښیږدي .

پښتو کې متل دی چې ((هندو سترې خدای ج ناراضه)) نن همدا کانه په امریکایانو وشوه ،نه یې خپل ولس خوشحاله کړ اونه ترې زمونږ ولس ښه وویل ،خودوئ پکې دسرونواو مالونو ډیری تاوان ولیداو داسې پکې دفقر او نیستۍ کندې ته ولویدل چې انشاءالله تر ډیره پورې به بیا دداسې کومې بلې حملې غلطي ونکړي !

ابوظهیر

# ددیني عالمانو ازموینه

# او دتاریخ پرېکړه....

دافغانستان اسلامي امارت مشر تابه په یوه لیک کې دنړۍ له علماوو څخه غوښتې چې په هغه غونډه کې له ګډون کولو ډډه وکړي چې اوسني امریکایي رژیم ته د مشروعیت فتوا ور کولو په غرض په پلازمېنه( کابل) کې جوړېدونکې ده !

په داسې حال کې چې امریکا د 46 هیوادو نو یوځې ځواک په ملتیا روان جنګ بایللی ، له علماوو نه دمشروعیت فتوا غوښتو هڅه دتعجب او حیر انتیاخالي نده ،وایي: اوبه وړی، داوبو زړ، ته هم لاس اچوي!

پوښتنه داده چې کرزي اوحکومت یې له دي وړاندې ولې د علماوونه دفتوا اخستو اړ تیا نه محسوسوله؟ څنګه دومره ناوخته علماء ور یاد شول؟ هغه مهال چې امریکا دافغانستان پر پاک حریم دظالمانه یرغل تابیانیوله ، ولې یې له علماوو نه پوښتنل ؟ایادزرهاوو انسانانو له وژلو اومعیوبولو وروسته له دیني علماوو دمشروعیت فتوا غوښتل د علماوو په شان پوري له ملنډو وهلو پر ته بله توجیه کېدای شي ؟دڅه باندې یوولس کلو په اوږده موده کې یې ولې دیني عالمان په یاد نه وه، چې نن له هغوئ نه فتوا اخستو ته اړ تیا پیدا شوه ؟

بې له شکه په افغاني ټولنه کې دیني علماوو ته په خورا قدر اواحترام کتل کېږي او یکې علماء تربل هرچا دروندمقام اورول لري ، خو داچې یوعالم له خپلې حقي داعي اوهدف وروسته نشي ، حق ته حق اوباطل ته باطل ویلو فریضه په سمه اوپوره تو ګه سر ته رسوي ،له نیکه مرغه دیو ه نیم پر ته زمونږ دهیواد په ماضي کې د علماوو ستر و کارنامو ته په پام ویلای شو چې دیني عالمانو د خپل ویاړمن تاریخ کرښې په زرینو توریو لیکلي دي .... له چنګېز ه تر انګریزه او بیا له شوروي نه تر امریکا دټولو یرغلګرو اونیوا کګرو ځواکونو دتېریو په وړاندې د جهادي بیرغ په رپاندولو اودخلکو په ویښولو کې افغان ولس دعلماوو له قایدانه کر دار برخمن شوی .

دلمر په څېر ښکاره ده چې د کابل په اوسني رژیم کې دچارو واګې د امریکایانوپه لاسو کې دي، په افغانستان کې د ګردو نیو اوپرونیو غمېزو مسؤلیت دامریکایانوپه غاړه دی، دافغانانو موجوده ټولې ناخوالې دامریکایانو داشغال اوواک زیږنده دي ، څومره وینې چې توی شوي او تویول کېږي په هغو دامریکایانو اودهغوئ دجنګي شریکانو لاسونه سره دي...هغه افغاني الاصل امریکایان لکه کرزی ، شیرزی، قسیم فهیم اونور... یواځې د امریکا

دمعاش خورو مامورانو په صفت د لته دماموريت چاري په غاړه لري ... دازادو اوخپلواکو واکمنانو پشان خپلواک اوازاد ندي...

اوپوهيږو چې ديني عالمان هغه څوک دي چې دقومونو اوټولنو په رهبري اورهنمائي کې دانبياوو(عليهم السلام) نيابت کوي ،يا په بل سپيناوي اولسونه اوخلک په سمه لار بيول پيغمبري عمل دی ، داوينا(علماء امتی کانبياء بنی اسرايل)اگر که لفظاً موضوعی حديث دی، خودمعناً صحيح دی ، ولې علماء هغه سپيڅلې اوپاک نفوس دي چې دنبوت له ځينو خواصو نه برخمن گرځول شوي دي ،هغه فرايض چې په وړاندينو امتونو کې پيغمبرانو به هغه سر ته رسول ،درسول الله (ﷺ) وفات وروسته هغه دامت علماء سر ته رسوي ، په دي وجه ددې امت علماء دپيغمبرانو په وار ثانو اوځای ناستوياد شوي دي

دېته په پام دامت علماوو داسلامي تاريخ په تېرو ځوارلس پېړيو کې دغه پيغمبري ميراث اونيابت په ښه توگه سر ته رسولی او دنړۍ دمحکومو اومظلومو د سر وله پاسه په سيوری کېدويې هغوئ دنجات په ساحل پوري کړي، هم داشان د دعوت اودحق په ويلو اوليکلو کې يې دومره بې دريغه قرباني ور کړي،چې دنړۍ دبل هيڅ قوم په تاريخ کې دحق پالنې داسې مثالونه نشته چې دهغوئ دعلماوو اوپوهانو دتاريخ هرباب اوهره پاڼه پرې ښايسته وي ،څنگه چې داسلامي تاريخ پاڼې دعلماوو په سترو کر دارونو او کارنامو ښايسته دي ، دنړۍ دډېر ظالم نه ظالم ځواک هيبت اودهشت دديني علماوو دپولادي هوډ اوقاطع عزم ديوالونه ندي لړزولي نه يې دهغوئ په تاندو ولولو اوجذبو غلبه موندلې ، ددنياوي ډار ، لالچ اوطمعې هيڅ يو مظهر هم ديني عالمان له خپلې لارې اومسير ه په بله ندې گرځولې.

په دنيا کې له حق څخه گرځوونکې صرف دوه څېزونه دي :يو ډار ، بل طمع ! خو د هغوئ (علماوو) په زړونو کې ډار و ، هغه يواځې د الله(جل جلاله) دجبروت اوجلال څخه ، اوطمع هم يواځې دهغه درحمت او درضا طمعه وه... (يدعون ربهم خوفاو طمعا) نوعلماء نه دډار په وسله ډارول شوي اونه دطمعې اوحرص په لالچ ور کولو سره چامات کړي !

په دې لړ کې دسيد التابعين سعيد بن المسيب اونورو سلفو کارنامې دننيو علماوولپاره له پند او سبق ډ کې دي : د حجاج بن يوسف په څېر دسخت زړي واکمن بې انتها ظلمونو هم "دسعيد بن المسيب" ژبه دحق او رښتياوو ويلو بنده نکړ ای شوه.... دمديني منوري په لارو او کوڅو کې ددار الهجرت امام(مالک بن انس)په داسې حالت کې گرځول چې دواړه اوگې يې د ډ کو مشکونو گرځولو شلې کړي اوهنوزپه "دُرو" وهل کېږي ، په دغه حالت کې هم دنوموړي په ژبه هغه فتواوه کومه چې هغه حق گڼله، دوخت د واکمنو بې ساري ظلمونو اووحشت دهغه ژبه بنده نکړ ای شوه ،دمديني منوري والي د هغه دنور تذليل اوسپکاوي لپاره نوموړی د شاتوري اس په شا سوروي په لارو او کوڅو يې گرځوي ،هر کله چې په کوم بازار اودخلکو په گڼه گوڼه باندې تېريده عين د "دُرې "وهلو په وخت کې پور ته کېده اوپه لوړ غږ يې ويلې :

"من عرفنی، فقد عرفنی، ومن لم يعرفنی فانامالک بن انس اقول ان الطلاق المکره ليس بشی " (ابن خلکان)

په همدې تو گه امام احمدبن حنبل د "معتصم بالله" په څېر دظالم اوتوند خويه واکمن په مخ کې ودرل شوی ، نهه جلادن هغه له يوبل وروسته په "دُرو "وهې، خيټه مبار که يې له زخمونو چور ،چور ده ټول جسم يې په وينو سور لړلی دی ،داهر څه په دې چې نوموړي کومه مسئله د کتاب اوسنت خلاف گڼله، معتصم په هغه ترې دخپلې راې او عقيدې موافق اقرار غوښته ، خو هغه ستر صبر کوونکې انسان د( کماصبر اولو العزم من الرسل) په پيروۍ داغږ پور ته کوه: " اعطونی شيئًا من کتاب الله وسنّة رسوله حتی اقول"...

ماقصه سکندرو دارا نخوانده يم
ازمابجز حکايتِ مهرو وفا مپرس

(حافظ)

هم دا شان امامنا الاعظم امام ابوحنيفه (رضي الله عنه) دبغداد قيد خانې ته زنځير اوزولانه ننوتل خوښوي خو دمنصور عباسي په څېر د قهرجن اوسفاح پاچا حکم منلو ته خپل سر نه ټيټوي.

امام شافعی له يمن څخه بغداد ته په دې جرم چې دحق داعي دی په رښتنولۍ اوشريعت ولاړ دی زنځير او زولانا بيول کېږي، حافظ ابن تيمه درې ځله بندي خانې ته لېږل کېږي بالاخره دقيد په حالت کې وفات کېږي خو دحق له ويلو خپله ژبه نه بندوي اودوخت



دواکمنو دنا رواوو په وړاندي دچوپتیا دمصلحت په ځای د وینا په عزیمت عمل کوي

په هندوستان کي "مجدد االف ثاني" د "گواليار" په کلا کي قید دی خو دجهانگیر په وړاندې سرټیټي نه قبلوي ،شیخ الهند ( مولانا محمو د الحسن ) له مکي مکرمي نه دمالټې جهنمي زندان ته تږلي لاسونه تلل مني خو دانگریز ي ښکېلاک په وړاندې له جهاد اومبارزي لاس نه اخلي...

نن ورځ دامریکایې ښکېلاک په وړاندي دنړۍ دعلماوو په وړاندې هم دغسې دقیدو بند پړاونه پراته دي ، اوددي خبرې ازموینه ده چې کرار ددې زمانې دیني عالمان دحق دلاري دغه منزلونه اوپړاوونه په څومره زړور تیا اومېړانه طی کوي ؟ ایا دنبوي نیابت کوم فرایض چې ددوئ په ذمه ایښودل شوي هغه سر ته رسوي که نه ؟ اودنبوت په فرایضو کي ترټولولوی مشهد دشهادت میدان دی، هلته یواځې په ژبه وینا کافي نده ، بلکې دخپلو وینو په رنګ دحق اوصداقت زرین توري لیکل دي!

### دکابل دړژیم مشروعیت :

څنګه چې امریکا او ملګرو ته یې دمجاهدینو په مقابل کي دخپل شکست نښې ښکاره شوي ،هغوئ اوس دنورو لارو په لټه بوخت دي ،په وروستیو کي داغږ پور ته کول هم چې دکابل حکومت دنړۍ له علماوو څخه دخپل مشروعیت په باب فتوا غواړي!! اوددي لپاره په کابل کي دعلماوو نړیواله غونډه رابلي! دنورو ناکاموهڅو اوتجربو تسلسل دی، په دي سره غواړي افغانستان کي خپل اشغال ته دمشروعیت سند جوړ کړي، ولي اوسنې حکومت ته دمشروعیت اوقانونیت سند ور کول دامعنی لري چې افغانستان کي دامریکایې اشغال په ضد روان خروج اوجهاد ناروادی !(معاذالله)

له شک اوشبهې پر ته دتېرو یوولس کلو راهیسې دافغانستان ټول ارضي تمامیت دامریکایانو لخوا اشغال اونیول شوی ، دکابل په ګډون ټول ولایتونه ولسوالۍ اوښارونه دامریکایانو په واک اوقبضه کي دي ، دهیواد په ټولو سیاسي ،اقتصادي اوپوځي چارو صلیبیان مسلط دي ، دهیواد ټول مهمي پروژې ، طبعي زیرمې ملي شتمنۍ ، دهوائي ډګرونو څخه نیولي تر سرحدي پولو او کندوونو پوري ټول عملا

امریکان اداره کوي ، دلویو لارو په سر امریکایان افغانان ښیسي ترې پخپله تبه اوخوښه پوښتنې اوګرویږنې کوي ، افغانان پخپل هیواد اوخپل وطن کي له غلامانوڅخه هم په ټیټ حالت کي ژوند تېروي دهیڅ یوافغان مسلمان عزت ، ابرو ، مال اوځان د امریکایې وحشتګرو له داړو اوبریدو خوندي ندی ، دافغانۍ میرمنو حیا اوعفت تروړل کېږي ایا بیاهم افغانستان ازاددی اویو مشروع حکومت لري ؟

دابعینه هغه حالت دی چې عظیم الشان قرآن یې په اړه مسلمانانو ته دکافرو سره د"تر ک موالات" حکم کړی...

### "تر ک موالات" څه شی دی ؟ اوپه اړه یې دعظیم الشان قرآن لارښونې څه دي؟

"موالات" د "ولایت" څخه دی ، د"ولایت" معنی ده "محبت ، اعانت ، نصرت اودوستي .... " یعني دکفارو سره له هرډول محبت ، اعانت ، نصرت اودوستۍ نه لاس اخستوته دشریعت په ژبه " تر ک موالات" ویل کېږي اوله محاربو کفارو سره ټول اړیکي قطع کول "تر ک موالات" دی .... څو چې ظلم کوونکی لوری یاد له له ظلم کولو څخه لاس وانخلي ... ظلم پای ته و نه ورسوي ، ترهغې ور سره هرډول اړیکي جوړول داسلام اوشریعت له حکمونو څخه سرغړونه ده ...

عظیم الشان قرآن نړۍ کي کافر په دوه ډلو ویشلي اوداویش په ممتحنه سورة کي شته " تاسې دکافرانو له دوه ډوله سره مخ کېدای شئ :یو هغه چې په مسلمانانو باندې یې حمله اویرغل نه وي کړی ، دمسلمانانو دحکومت اوخلافت په ضد یې وسله نه وي پور ته کړي ، دمسلمانانو کلې او کښتونه یې نه وي قبضه کړي، عظیم الشان قرآن له داسې کافرانو سره سوله اومصالحت نه ردوي ترډېره بریده له هغوئ سره دښو اړیکو دجوړولو ښودنه هم کوي.

بله ډله هغه ده چې په مسلمانانو یې حمله اویرغل کړی ، دمسلمانانو دحکومت اوخلافت په ضد یې وسله پور ته کړي، مسلمانان یې له خپلو کورونو ، کلیو اوښارونو څخه شړلي ، دهغوئ په اړه دعظیم الشان قرآن حکم دادی :مسلمانان دي له هغوئ سره ټول اړیکي معطل اوقطع کړي...

داچې عظیم الشان قرآن دغه قانون دانصاف اوبشپړ عدالت غوره نمونه دی ، ددې لپاره چې په نړۍ کې سوله اوعدالت راشي ، نواعلان کوي: مومنان دي له هغو کافرانو سره چې محارب دي قطعا داسي اړیکې نه جوړوي چې هغه دمحبت ، اعانت ،نصرت اودوستۍ په معیار وي ... داحکم دعظیم الشان قرآن په ګڼو ایاتونو کې راغلی دی...

دامریکا په مشری ټول راغلي یرغلګر ځواکونه ،دهغوئ هیوادونه اودهغوئ معاونین، اوملګري دمسلمانانو په مقابل کې دتېرویوولس کلو راهیسې د"محارب فریق "اولوري په توګه ولاړ دي ، دهغوئ په لاسو په زرهاوو افغانان ټپیان اوشهیدان شوي ، دکرزي په مشری جوړ امریکایې حکومت ګام په ګام داشغالګرو سره یوځای په زرګونو افغاني ځوانان اومجاهدین په دې جرم وژلي او وژني یې چې هغوئ له امریکا څخه دخپلې خاوري ازادي غواړي ، په زرګونو ځوانان هم دااوس دکرزي رژیم له لوري په مختلفو زندانو کې په دې جرم تر تعذیبونو لاندې زوروول کېږي چې هغوئ پخپل هیواد کې دامریکا په مشری دګردو صلیبې ځواکونو شتون نه مني ، نو کرزی اودهغه په حکومت کې راټول خلک دکافرو اوصلیبیانو معاونین دي ، هغوئ یوه مسلمان افغان اومجاهد سره په ظلم کولو کې دخپلو امریکایي بادارانو څخه څو وړاندې دي کم نه ، له دې وجې ددغه رژیم چارواکې هم دمسلمانانو اواسلام په مقابل کې د" محارب فریق " ملګري اومعاونین دي، څنګه چې له امریکایانو اونورو سره دمحبت ، اعانت ، نصرت اودوستانه اړیکو جوړول حرام دي هم داسې دکرزي اودکابل له رژیم سره دمحبت ، اعانت ، نصرت ، اودوستۍ اړیکو پالل ناروادي.

ځیني خلک دغه توپیر ته چندان پام نلري ، خو حقیقت دادی چې اسلامي شریعت د"محارب اوغیر محارب" په توپیر ټېنګار لري ، دامریکا په مشری په عراق اوافغانستان کې ټول جنګیدونکې ځواکونه که هغه امریکایې ،اروپایي یرغلګر دي یاعراقي اوافغاني ګوډاګیان هغوئ ټول داسلام اومسلمانانو په مقابل کې یو "محارب فریق"دي .

د قطعي نصوصو په موجب په اسلامي قانون کې دمسلمانانو لپاره حرامه ، ناروا ، فسق ، اونفاق دی چې هغوئ له امریکایانو اودکابل امریکایې حکومت سره مرسته ، کومک او تعاون وکړي ... که هر مسلمان افغانستان کې دمیشت اشغالګرو ځواکونو سره مرسته ، کومک اوتعاون کوي دهغه دغه عمل کفر ته قریب قریب عمل دی ... له امریکایانو سره دخواخوږۍ اړیکې لرل دهغوئ په مړو ماتم اوویر کول ،دهغوئ عسکرو ته ترصدور کول هغه څه دي چې په کولو یې دعلماوو په وینا کوونکی تن حق نلري چې ، دیوې دقیقې لپاره هم داسلام اومسلمانانو په صف کې ځان ته ځای وګوري ....

اسلام حکم کوي : کوم خلک چې په ښکاره د"محارب لوري" په ملاتړ او دفاع ولاړ وي ، اګر که په ظاهره خو هغوئ ځانونه مسلمانان بولي، خو دالله ( جل جلاله ) په نزد هغوئ مؤمنان ندي او له اسلامه بیرون وتي ...ولې اسلام اونفاق دواړه په یوه زړه کې نه ځاییږي...

نو باید دهر مسلمان دزړه پر لوح داتوري نقش اوجوړوي: څو چې امریکا له خپلې ابلیسانه تګلارې په شا شوې نه وي ...
دافغانستان اوعراق اشغال یې پای ته رسولی نه وي، ترهغې دخپلو ټول جنګي شریکانو په ګډون دمسلمانانو په وړاندې دیوه "محارب فریق " اولوري حکم لري... که دهر مسلمان په زړه کې دیوې زرې برابر ایمان هم وي ،دهغه لپاره روانده چې دامریکا او دجنګې شریکانو په لوریې ددوستۍ لاسونه وغځوي ...

هو !په هره هغه ثانیه اولمحه کې چې امریکا له خپل شیطاني دریځ لاس په سر شي ، له عراق اوافغانستان یې خپل ټول عسکر وایستل ، عراقیانو او افغانانو ته یې ازادي ور کړه ، بیا هغه مهال "محارب فریق " محارب نه پاته کېږي ،بلکې دکافرانو دهغه بلې ډلې په حکم کې راځي : چې په مسلمانانو یې حمله اویرغل نه وي کړی ، دمسلمانانو دحکومت اوخلافت په ضد یې وسله نه وي پورته کړي ، مسلمانان یې له کورونو، کلیو اوښارونو نه وي شړلي ، نه خپله په ظلم کولو کې لاس ولري اونه نور ظلم کولو ته هڅوي .

هر کله چې امریکا په رښتیا خپله ظالمانه تګلاره تغیر کړه ، دمسلمانانو په اړه یې خپله له جارحیت ډکه پالیسي پای ته ورسوله ، له چل ول او فریب ور کولو په ځای یې واقعاً عملا سولې ته ژمنتیا ثابته کړه ، دولسونو ازادي اوخپلواکې یې تسلیم کړه ، نوبیا هر سړی سوله غواړي ... هر افغان مسلمان امنیت خوښوي... ترهغه چې څو امریکا دمسلمانانو په مقابل کې د"محارب فریق "اوځواک په حیث سیاسي اوپوځې موجودیت ولري اودمسلمانانو په وړاندي جنګې حضور ولري ، دهیڅ یوه مسلمان لپاره روانده چې دکرزي

دحکومت فرمانونه اوپرېکړي اومني ، پخپلو سیمو کې دهغه دحکومت داستازو ، وزیرانو ،والیانو، ولسوالانو اوو کیلانو سره دیوه اسلامي اوافغانې حکومت دچارواکو په څېر معاملات طی کړي ، ولې دکرزي په مشری دتېل شوي رژیم شتون په حقیقت کې دامریکا اوبریتانیې حاکمانه شتون دی، داسلام اوهلال په مقابل کې دصلیب حاکمیت دی ... د مسلمانانو لپاره جایزنده چې په ځانو دیوه کافرانه رژیم سلطه ومنې یادهغه رژیم چې هغه کفر ته وفاداروي..

... افغانستان کې مسلط رژیم نه یوازې امریکا اواسلام دښمنو ته وفادار اودهغوئ دوست اومعاوین دی بلکې عملاً ټولې چارې یې مستقیماً امریکایان رهبري کوي... له پارلمان څخه نیولې تر ارګه اوقضا دټولو ادارو اوارګانو په سر کې هغه څوک قرار لري چې له امریکایې تابعیت برخمن دي ، هغوئ له امریکا یې ګټو څخه ددفاع سوګند خوړلی دی... لنډه داچې دافغان مسلمان ولس لپاره به دا اسانه وي چې پخپلو ور غیو کې لړمان ونیسې ! خو دا اسانه نده چې موجوده امریکایې رژیم دمشروع حکومت په توګه ومنې ! هم داسې توقع داسلامي نړۍ له علماوو اوپوهانو اودنظر له خاوندانو څخه ده، چې هغوئ داوسنې رژیم په اړه داسلامي شریعت پورته څرګند حکمونه په پام کې ونیسې .

په دې لړ کې دځینو ، عالم نما اشخاصو څرګندونې ډېرې دتعجب اوحیرانتیا وړندي ولې روښانه ده که هغوئ دډالر ،پونډاویو روبنده ګان په دې هم پوۍشول چې اوباما له دوئ نه د"فرعون ابوجهل عتبه اوشیبه" په صفت خوشحاله کېږي ! نوباور وکړئ چې په اړه دیوې لمحې لپاره هم تامل ونکړي ،اوپه ډېر ویاړ به دهغوئ د مناقبو اوفضایلوپه بیانولو کې مډالونه واخلې ! خو الحمد الله چې نن دهغو علماوو شمېر هم لږندی، کوم چې له ډار اوطمعې څخه په لاپرواهې کې سپین ته سپین اوتور ته تور وائي ،دملامتوونکو د ملامتیا پروانه ورځي ، نن ورځ ددغسې اولو العزم علماوو د کردار بیا ازموینه ده اوور ته ننۍ نړۍ او راتلونکې تاریخ انتظار لري ... هو! هغه څېرې چې دعلماوو په نوم په دغه شر مېدلې غونډه کې ګډون وکړې تاریخ به هغوئ هېڅکله ونه ښنې.

## دکار خبرې

- که چېرته د بې عدالتیو په اوج کې هم بې طرفه یاست، نو پوه شه چې د ظالم لوری مو نیولی دی.
- همدا چې څوک وکولای شي تاسو په غصه کړي، نو پوه شه چې پر تاسو یې کنټرول موندلی دی.
- یو پوه وایي زه د بري په رمز نه پوهېږم، ولې د ماتې او شکست رمز هغه هڅه ده چې له مخې یې د ټولو راضي کول غواړئ.
- په نړۍ کې درې شیزونه ډېر سخت دي ، فولاد ، الماس او ځان پېژندنه .
- له هغو خلکو د آزادۍ اخستل چې نه غواړي غلام پاته شي سخت دي، خو هغو خلکو ته چې غواړي غلام پاته شي، د آزادۍ ورکول تر دې هم ډېر سخت دي.
- هر کار په پیل کې سخت وي ، شاهین دالوت په لومړۍ مرحله کې د ډیرفشار له امله دوزرونو ښکې تویوي ، خو د پرواز په اوج کې دوزرونو رپولو ته هم ضرورت نه احساسوي.

هغه چې مال نلري ( فقیر ) دی ، خو هغه چې له مال پرته هیڅ نه لري ( افقر ) دی.

**ذبیح الله مجاهد :**

# يرغلګر عملاً په تيښته دي

## مجاهدينو له مختلفو لارو په استفاده ددښمن په ليکو کې ( پيچلي او لوی ) نفوذ کړی !

داچې په هيوادکې د ۱۴۳۳ هق کال اود ۲۰۱۲ م کال دجهادي جرياناتو او حالاتو په اړه دالاماره ويب پاڼې اداري داسلامی امارت له ويندوی محترم ذبيح الله مجاهد سره يوه تفصيلي او هراړخيزه مرکه کړې ،ستاسو محترمو لوستوالو توجه يې لوستلوته راګرځو :

---

بسم الله الرحمن الرحيم ، داسلامي امارت وياند محترم مجاهد صاحب له هرڅه وړاندې درته هرکلی وايو دلومړي پوښتنې په توګه که دسږ کال د الفاروق عملياتو په اړه لويې برياوې او لاسته راوړنې او همداراز په دښمن لوي ګوزارونه راته په ګوته کړئ مهرباني به مو وي؟

**ځواب**: الحمد لله وکفی والصلوة والسلام علی عباده الذين اصطفی امابعد دسږکال الفاروق عمليات دنورو کلونو په نسبت دډيرو ځانګړتياوو لرونکي وو ،ترټولوستره ځانګړنه يې داوه ،چې مجاهدينو سږکال ډيرو سترو فوځي اهدافو ته لاس رسی لاره ،دبيلګې په توګه دباګرام په هواي اډه کې دامريکا دلوی درستيز "مارټن ډيمسي " دسورلۍ خصوصي الوتکه له مينځه وړل پداسي حال کې چې هغه په ډيره مخفي توګه باګرام ته په سخت امنيتي چمتوالی کې پټ سفرلاره خومجاهدين له هرڅه نه خبرشول اوبيايې دنوموړي الوتکه هم په نښه کړه ،اويالکه د هلمند په شوراب کې ديرغلګرو قواوو پر ستر "بيس " بې ساري بريد چې ددرنو ځاني تلفاتو ترڅنګ يې يودرجن هغه قيمتي فوځي الوتکې پکې له مينځه ولاړې چې لدې وړاندې يې دويجاړتيا ساری نه ليدل کيږي، په خوست کې په صحراباغ لوی بريد دغه راز دخوست په زاړه هوايي ډګر چېرته چې دسي آی اې مرکز پروت دی وروستی بريد ، په کابل مرکز کې ددښمن دټولو سختو امنيتي تدابيرو در څنګ په دښمن کارنده بريدونه، په ننګرهار هوايي ډګر او ستره امريکايي اډه دوه ځله پراخ بريدونه ، په ميدان وردګو کې په امريکايي اډو او مرکزونو ستر بريدونه دغه راز په پکتيا کې ددښمن په يوه ستره اډه بريد چې اډه تقريبا له بنسټه ونړوله دغه راز ،په کندهار ،هلمنداو نورو ولايتونو کې دبرياليو مخامخ عملياتو تر څنګ چې نژدې هره ورځ تر سره کيږي ددښمن دسلګونو پوځي وسائطو دمينځه وړل، په لوګرکې دوه ځله په مهمو امريکايي مراکزو بريدونه ،دکابل شمال ته دسوپريم امريکاييااکمالاتي شرکت په بشپړه توګه له منځه وړل دهيواد په شمال کې په دښمن دوام داره بريدونه او دډيرو ساحو دمجاهدينو په ولکه کې را وستل او داسي نور مهم بريدونه چې دښمن ته يې درانه زيانونه واړول او له پوره وارخطايي سره يې مخ کړ ، دغه ډول منظمو اوبرياليو بريدونو له يوې خوا يرغلګر ولړزول اوله بلې خوا يې نړيوال هم حيران کړل،همداراز ديولړ ډيرو

مهمو اشخاصو په ننبه کیدل چې وروستی یې دکرزي
داداري دملي امنیت عمو مي رئیس اسد الله خالد دی ،هم
دروانو عملیاتو یوه مهمه برخه وه ،له بل پلوه ورځني
عملیات هم دپخوانیو ټولو کلنو په نسبت خوار زیات وو ،
تردې حده بریدونه په جګړیز موسم کې اجرا شول چې زموږ
خبر رسونکي او خبر جوړونکی ملګري یې په خبر جوړولو
پسې نه رسیدل او تاسو به اوریدلی وي چې په ځینو
میاشتو کې دښمن هم په دوی د ۳۰۰۰ درې زرو نه په زیاتو
بریدونو اعتراف کاوه اودکابل اداري مشرهم دخپلو
عسکرو او پولیسو په وژلو برالا وارخطایي ښودله ،

دسږني عملیاتو بله ځانګړتیا ددښمن په مینځ کې
نفوذ و ،چې واقعا ډیردقیق اوژور تاکتیک وو ،له دې لارې
که له یوې خوا پربهرنیو ځواکونو دداخلي عسکروپه ښه
سلګونه کارنده اوبریالي بریدونه ترسره شول، خوله بلې
خوا د دکابل اداري له مینځه دپراخو استخباراتي
معلوماتو په ترلاسه کولو مجاهدینو وکولای شول چې
عملیات په دقت سره تنظیم اوترسره کړي.

یوه بله معنوي ځانګړتیایې دا وه چې سږني عملیاتو
دپخوا په څیر پر دښمن زیات رعب اچولی وو ،په اکثرو
سیمو کې خارجي اوداخلي عسکرو له خپلو مرکزونو بهر
راوتلو ته زړه نه ښه کاوه ،که به یې مجاهدین وهم لیدل نو له
ویرې یې دځان خوندي کولو هڅه کوله،چې دا ددښمن
درواني ماتې ښکاره نښې وې .

دسږ کال یوه بله جهادي ځانګړنه داوه ، چې دښمن
عملا په تیښته پیل وکړ ، دسږ کال په اوږدو کې یرغلګرو
دهیواد له ډیو ولایاتو مثلا ، فاریاب ، سمنګان او ځینو
نورو سیمو څخه په یو مخیز ډول ووتل ، دبادغیس له مقر
ولسوالۍ پرته له نورو ټولو وتښتیدل ، دغه راز دهیواد په
لراوبر کې یې ددوی په خپل اعتراف له ۴۰۰ زیاتو مهمو
قرارګاوو څه وتښتیدل ،او لا هم دالړۍ دوام لري ، له دې
څخه داسې ښکاري چې یرغلګرو نور په پوځي ډګر کې
شکست منلی اودوی یې چې په مطبوعاتو کې مني ترهغه
په مراتبو له زیاتو سیمو تښتیدلي او وطن ترې تصفیه
شوی دی چې په دې اساس ویلی شو چې یرغلګر همدا
اوس عملا په تیښته بوخت دي.

**پوښتنه:** داچې څه موده وړاندې دښمن ادعا وکړه
چې ګنې په دوي دمجاهدینو بریدونه دپخوا په نسبت کم
شوي تاسو یې څرنګ ارزوئ ؟

**ځواب:** داسې اعلانونه دوي دایولس کاله کوي او
لا به هم دوام ورکړي ، دمجاهدینو بریدونه هرکال دخپل
پیل اوقوت خاص وختونه لري ، زموږ دهیواد دموسمي
حالت په نظر کې نیولو سره کله داسې پیښیږي چې
دعملیاتو حجم دبل وخت په نسبت لږ تغییر کوي ،خو داکله
هم دمجاهدینو په کمزوری او ددښمن په قوت دلالت نه
کوي اونه باید ورنه تبلیغاتي استفاده وشي ، کله چې په
اکثرو ولایاتو کې واوره وشي او یا ساړه زیات شي نو
دشپې تیرولو په برخه کې طبعا مجاهدین له مشکل سره
مخ کیږي خو بیا هم مجاهدینو داثابته کړې چې په دښمن
به خپل بریدونه دکال په اوږدو کې جاري ساتي ، بل پلو
دښمن هم په مقابل کې له کمزورۍ سره مخ شوي، له ټول
هیوادنه یې له څلورو سوو څخه زیات مهم او عمده مراکز
تنها د خا جي اشغالګرو قوااوراټول او تخلیه کړي او
دخپلو عسکرو ګرځیدل او تحرکات یې کنټرول اوکم کړي
، چې اوس په هغو سیمو کې مجاهدین دعملیاتو
اوبریدونو لپاره موارد نه لري اویا کم شوي دي ، جګړه خو
هسې هم ددښمن دموجودیت په ځایونو کې کیږي خو کله
چې دښمن له کوم ځای نه پښې سپکوي او تښتي نو په هغه
سیمه کې جګړې ته اړیتانشته هلته مجاهدین واکمن
کیږي او سوله ټینګیږي نوطبعا به بریدونه هم نه کیږي او
ددې علت ددښمن تیښته ده ، نه دمجاهدینو کمزوري
،دکندهار په ځینو سیمو کې را ته مجاهدینو کله کله ویل
چې موږ ددوی قرارګاو ته نژدې ور سو او بیا ور باندې
ډزې په دې موخه وکړو چې دوی دسمڅو را وباسو خو دوی
را وزي نه نو ددښمن نه را وتل هم زموږ عملیات کله کله

کموي، بل پلو ددوي دبريالي ښودلو اعلانونه چي له رسنيو نه اوريدل کيږي دا دمورال ګټلو يوه ناکامه هڅه ده، څرنګه چي دميډيا ډيره برخه ديرغلګرو په واک کي ده، نودميډيا له لارې هرکال هغوي دمورال ساتلو لپاره يو ډول مستقل تبليغاتي کمپاين چلوي، دجهادي مقاومت په لومړيو کلونو کې به دوي هره ورځ دسلګونو مجاهدينو دتلف کيدو مصنوعي اعلانونه کول اوبيابه يې داهم ورسره بدرګه کوله چي سږکال دمجاهدينو زور اوبه شوي او نورمقاومت نشي کولی، چې بالاخره دوې په دې ډول اعلانونو شرمنده شول او خلګ وربادي پوه شول بيا يې نور-نور تبليغات کول، مثلا پروسږکال به يې ويل چې مجاهدين نور له مخامخ جنګ نه لويدلي، له ماينونو کار اخلي، پداسي حال کې چې همدې ماينونه دوې سخت وارخطاکړي وو او اوس يې هم وارخطاکړيدي ، سږکال هم همدا تبليغات کوي، پداسي حال کې چې سږني عمليات په عامه توګه له پخوانه تخمينا ۲۰ فيصده موثر اوګړندي و، خوپه خاصه توګه ځيني پرمختګونه بيا داسې وو چې بالکل يې ساری نه لاره.

**پوښتنه:** په ځينو سيمو کې چې دد سيسوله مخې سيميزاربکي د پاڅون کونکو په نوم ونومول شول او په مطبوعاتو کې خورا پاملرنه هم ورته وشوه ، خوله لږ څنډ وروسته په عملي لحاظ داسې اقدامات ډير ونه ځليدل ، تاسو يې اوسنی وضعيت څرنګ ارزيابي کوي آيا هغوی ځپل شوي ؟

**ځواب:** له بده مرغه يرغلګرو او دهغوي سميزو اوکورنيو ګوډاګيانو دعامو خلګو دغولونې لپاره زموږ يو شمير عنعنوي، تاريخي اوديني کلمات دځان دسپر په توګه په جعلي بڼه وکارول اوبدنامه يې کړل، لکه دلوې عنعنوي جرګې نوم چې په تاريخ کې به دهيواد دخپلواکې لپاره رابلل کيدله اوس يې په همدې نامه خو پلورل شوي خيرې دهيواد پلورلو دټرون لپاره راغونډکړل، اود اتاريخي اوعنعنوي کلمه يې په جعلي بڼه وکاروله اوبدنامه يې کړه، همدا راز دديني عالمانو شوري اوياهم لکه داربکي کلمه چې په تاريخي لحاظ هغه قومي لښکرته ويل کيده چي له بهرني يرغل نه دهيواددفاع وکړې نه داچې ديرغل په چوپړکې دهغوي چوکيداري وکړي، همدا کلمه دغلو ،معتادانو اوټوپکمارو هغې بې مهاره مخلوق ته وکارول شوه چې دپيسو لپاره نه د ملت، نه د دين اونه هم دچا دعزت پروا لري، خوچې داربکي کلمه نوره دومره بدنامه شوه، چې ولس ورنه استفراق کوي، نوبيايي ورته دپاڅون پاکه کلمه وکاروله اوهمدا کلمه يې هم په جعلي کاروني سره بدنامه کړه اودنويمو کلونو هغه ټوپک سالاري يې خلګوته ورياده کړه چي ولس يې له ظلمه دطالبانو اسلامي تحريک ته پنا ور وړې وه اوتحريک دهمدې مظالمو او وحشت دعکس العمل په توګه رامينځ ته شوی وو ، خو اوس له نيکه مرغه ولس دهمدې نويو مظالمو او وحشت نه دنجات لپاره بيا اسلامي امارت ته په خلاصه ټنډه پراخ هرکلي وايې او اسلامي امارت هم ددغه ټولنيز ميکروب له مينځه وړل پخپلو لومړيو اهدافو کې ګڼي، ځکه خويې دغه وحشي اومنفور عنصر که داربکې په نامه وو اوکه په بل هر نامه ، سخت وځاپه اولابه يې ځپلوته دوام ورکوي، ځکه چې دولس دمال، پت اوعزت ساتنه اسلامي امارت دځان مسوليت ګڼي، دغه دولس، دسر، مال اوعزت دښمنان به کله سرپورته کولوته پرينږدي ، تاسوته معلومه ده چې داربکيو په نامه چې کوم خلک دغزني په شلګر ولسوالۍ کې راټول شوي وو ،دغزني ولايت دمجاهدينو دمشر تابه دښه تدبير په اساس هغوې مهار کړل شول او کليدي اومهم کسان يې ووژل شول اوډيري اسلحې او مهمات ور څخه غنيمت ونيول سول، باقي پاتي چرسيان او پوډريان يې هم ځيني ايران ته دکار اوبار لپاره لاړه او ځيني بيرته توبه ګار شول او مجاهدينو ته تسليم شول چي په دې توګه يې هسته له منځه لاړه ، همدا راز دلغمان په ولايت کې همدا دپاڅون په نامه اربکيانو مهم مشران په يوه ورځ ووژل شول او په دې توګه يې موجوديت په عدم بدل شو ، په

ننګرهار او پکتيا کې هم وځپل شول او نورچاته د تهديد ورنه دي.

**پوښتنه**: داچې په لغمان، ننګرهار اوبيا د پروان په غوربند کې د کابل داداري چارواکو اعلان وکړ چې دمجاهدينو په وړاندې پاڅون ونه شوي او يا به په نيږدې راتلونکې کې وشي، ددې خبرې معنې څه ده آيا دکابل اداره غواړي په لوی لاس او برالا دا پروسه وهڅوي که څرنګ ؟

**ځواب**: هغوي وارخطادي،نوره لار ورنه ورکه ده،هرې خواته لاسونه اچوي،پيسې شيندي،خوپه عمل کې هغوي څه لاس ته راوړنه نلري،فقط د تبليغاتي جنګ په توګه له حقيقت نه ليرې اعلانات کوي اوس هغوي په فرضي خبرو او توهمي اعلانونو خپل باداران را ټينګوي اودخپلو پيروانو زړونه تکيه کوي،پخپله لوديځو مطبوعاتو داربکيانو تشکيل يوه ناکامه اوشرمنده پروسه نومولې،دسيمې خلک له اربکې هره ورځ هغه څه ويني چې نوريې ديوې شيبې لپاره هم نشي زغملی، له جنسي تيري نيولې ترکورونو لوټولو اوسرې تښتولو پورې ډول ډول پيښې دهمدغو اربکيانو له لاسه پخپله په دولتي اولويديځه ميډياکې اعلانيږي اوهرڅوک پرې خبر دي،دکابل اداره او امريکايان لومړې په دې متحد وو چې داربکې اوپاڅون په نوم دې دپيسو په بدل کې مليشه مسلحه کړای شې،خو چې داکاريې پيل کړ،نو په اکثرو سيموکې يې نتيجه ورنکړه اوس مايوسه ښکارې او دکابل اداري اوامريکايانو ترمينځ په دې اړه تخنيکي هماهنګي هم نشته،عام خلګ هم ددې اقدام پرضد منفي احساسات لري،اوس داپروسه ترډيره يوائې ديوې تبليغاتي هڅې په توګه تراعلاناتو پورې محدوده پاتې ده ، بل داچې تاسو پوهيږئ سږکال د پروان ولايت په ډيروبرخوکې جهادي بهير خورا دستاينې وړ وو ، خصوصا دغوربند درې اړوندو ولسواليو کې، نو دښمن هم ددې هڅې کوې چې په تبليغاتي لحاظ په سيمه کې ځان واکمن وښيې ، کله چې دخپل واک لپاره نشې کولای خپل پوليس اوعسکر سيمې ته وليږي ځکه دولسي غبرګون سره مخ شوي ، تلفات يې ليدلي نو غواړې داربکيزم حربې ته لاس واچوي او بيا نوم هم ورته دوی وټاکې چې ګنې داخلک پاڅون کوي !!! خو په واقعيت کې داسې اعلان او مخکې له وړاندې تبليغات کول پخپله ددښمن دټولو امنيتي ارګانونو په بې کفايتي ، ناتوانی ، ضعف او ماتې دلالت کوي ، دوي که ريښتيا حس درلودای په داسې اعلانونو باندې به يې دشرم احساس کولای ، ځکه ددوې د عدم توانايي او نه کنټرول څرګندونه کوي ، خوموږ خپل ولس ته ډاډ ورکوو چې لکه ددښمن نورې ټولې حربې چې له ماتې او شرمسارۍ سره مخ شوي دا پروسه هم ان شاءالله په سرکې ناکامه ده او هيڅ لاسته راوړنه به ورته ونه لري .

**پوښتنه**: دراپورونو له مخې داسې معلوميده چې سږ کال دمجاهدينو لخوا د عملياتو او ددښمن په وړاندې دبريدونو شمير او حجم خورا زيات وو ددې علت په څه کې وينئ ؟

**ځواب**: دپخوا په نسبت اوس دمجاهدينو په فوځي امکاناتو اوجنګي مهارت دواړو کې قوت اوپرمختګ راغلی،دښمن اوس له پخوانه زيات مرعوب او وارخطاده ،مقابلې ته زړه نه ښه کوي،له بلې خوا دولس ملاتړ هم له پخوانه اوس ډير علنی سوی،چې پدې کې داربکيانو دوحشت اوظلم لامل هم دی،نوځکه خو په بريدونو کې زيادت اوقوت دواړه ترسترګو کيږي ، دايو واقعيت دې چې سږکال دپخوانيو ټولو جهادي کلونو په نسبت زموږلپاره ډير بريالی کال وو ، څرنګ چې اوس مجاهدينو دهيواد ټولو برخوته خپل جهادي بهيرپراخ کړی ، دهيواد په ډيرو برخوکې نوي جهادي محاذونه پرانستل شوی او ولس نور په کامله معنی له خپلو مجاهدينو ورونو نه کلک حمايت کوي نو طبعابه په دښمن بريدونه هم له پخوا زياتيږي او په دې سره به ان شاءالله اړکيږي چې زموږ خاوره هرڅه ژر پريږدي او زموږ دهيواد استقلال او



خپلواکۍ ومني ، زموږ ملت تر بل هروخت زيات دجهاد په اهميت پوه شوي او اوږه په اوږه دمجاهدينو سره ولاړ دي چې داټول سبب شوي چې دعملياتوحجم زيات شي او په دښمن کلک ګوزارونه ترسره شي.

**پوښتنه:** سږکال دټول هيواد ترڅنګ دکابل په شمال کې خصوصا د پروان او کاپيسا په ولايتونوکې دمجاهدينو شمير دپخوا په نسبت څو چنده زيات وو اودښمن ته يې خورا لوی زيانونه هم واړول لکه دغوربند په دره کې سره له دې چې هلته مجاهدين تقريبا په محاصره وي شکل اوسيږي ددې علت څه کيدای شي ؟

**ځواب:** اوس مقاومت دهيواد ټولو برخوته عموميت پيداکړی،لومړی يې په ځينو برخوکې دځينو نورو په نسبت توپير لاره،خواوس خلک دتبليغاتو له مصنوعي غبارنه را ووتل حقايق يې پخپلو سترګو وليدل او ديرغلګرو په عزايمو پوی شول اودهغوي اعمال يې هم ښه مطالعه کړل،افغانان په هيواد ،دين اودهيواد پر استقلال مين خلک دي،څه وخت په ځينو برخو کې داستعمار دښمنانو غولوونکي تبليغات کول ،خواوس خلک هوښيارشول اواوس ددغه ارمان لپاره يو دريځ خپلوي ،بل مهم علت دادی چې دپروان او کاپيساولايتونه په ټوليزه توګه دمجاهدينو لپاره لکه لوګر او ميدان وردګ ولايتونه خورا اهميت لري له يوې خوا په دې سره دهيواد په مرکز دمحاصرې کړۍ تکميليږي اوله بل پلوه مهمه امريکايي اډه دبګرام هوايي ډګرهم ددواړو ولايتونو نه تر هدف لاندي نيول کيدلای شي چې دسږکال په اوږدوکې دهمدې سيمونه په بګرام خورا ښه او کاري ګوزارونه هم ترسره شول اميدلرو چې په هغوټولو سيموکې مجاهدين لاهم پياوړي او تقويه شي چې دبهرنيو د اډوسره نيږدې موقيت ولري او يا دښمن ته ډير سرخوږي جوړولای شي تاسو به دباميانو ولايت دمجاهدينو دعملياتو را پورو نه هم اورئ چې دکورنيو لاس پو څو تر څنګ يې بهرنيو اشغال ګرو ته هم دمال او سر زيات تا وان اړولی چې دښمن هم و ر باندي وخت په وخت اعتراف کړی.

**پوښتنه:** دسږ کال عملياتو يو لوی تفاوت له پخوانيو عملياتو سره په دې کې وو چې ددښمن په لويو مراکزو خورا لوی او زيان اړونکي بريدونه وشول ، لکه دخوست په صحراباغ بريد ، په لوګر او ميدان وردګو کې ددښمن په لويو مراکزو فدايي بريدونه ، دهلمند دښوراب په لويه برتانوي او امريکايي ګډه اډه خورا منظم بريد ،څه موده وړاندې په بګرام کې دامريکا دلوی درستيز په الوتکه رسابريد ، دپکتيا په زرمت کې په امريکايي او داخلي ګډه اډه بريد او په بګرام کې دبهرنيو قواوو په ترټولو لوی زيرمتون(سپريم ګروپ)بريد او داسي نور ددغوټولو لويو بريدونوجهه څه ده او پيغام يې امريکايانو ته چې غواړې زموږ په هيوادکې اوږد مهاله اډې ولري څه کيدلای شي ؟

**ځواب:** ددغو ټولو بريدونو او عملياتو هدف په رساتوګه امريکايي يرغلګر جهت ته په واضح او عملي شکل داورښودل دي چې که وغواړې زموږ په هيواد کې اوږدمهاله اډې ولري ، دلته خپل يرغل اوږد کړي ، زموږ هيواد اوسيمې ته مشکلات وځيږوي نو موږ هم ددوي داقداماتو په وړاندې بې تفاوته نه يو ، په دغو بريدونو سره موږ دوي ته وښودله چې افغانستان دځينو نورو هغو هيوادونو په څير نه دی چې امريکايي شتون يې په خپله خاوره کې منلی ، زموږ ملت به دلته اوږدمهاله يرغلګروته هم داسې درس ورکړي لکه دايولس کاله يې چې ورکړ او په دغو علمياتو سره خورا په آسانۍ سره زموږ هوډ څرګنديدلای شي ، موږ اراده لرو چې که امريکايان دسلو کلونو لپاره هم دلته ديرغل خيال په سرکې ولري نوموږ به دسلوکلونو لپاره هم ورته آمادګي ولرو چې ويې ځپو ، سرخوږی ورته جوړ کړو او له خپل شوم هدف نه يې دتورې په مټ په عملي توګه را ورګرځوو ، ددې بريدونو څرګند پيغام دادی چې تاسو دلته په اډو کې هم له موږ نشي



خوندي کيداى اودځمکې په تل کې مو هم په ننبه کولی شو ،نو دحل يو اځنی لاره مکمل وتل اوداشغال بشپړه اختتام دی وبس.

**پوښتنه:** په ټول هيواد کې خصوصا په شرقي سيمو کې مجاهدينو سږکال دجهادی امورو دپرمختګ سره سره دخلکو سره دپخوا په نسبت ډير صميمانه اونرم چلند درلود ، لکه دخلکو سره دهغو په ټولنيز ژوند کې برخه اخيستنه ، دهغو په فاتحوکې ګډون ، دهغو په خوښيوکې برخه اخيستنه ، له هغو سره غمرازي اودهغو ترمنځ دستونزو او دعوو په ښه توګه حل کول چې په دا وروستيوکې دلغمان په ولايت کې ددوو لويو قومونو ترمنځ دکلونو کلونو منازعې حل يې ښه مثال دي چې پخوا ډيرخلک پکې وژل شوي وو ، خلکو پکې لوی لوي زيانونه ګاللي وو ، ددغه چلند راز په څه کې دی ؟

**ځواب:** داسلامی امارت ټول مجاهدين دخپل دينې مسئوليت له مخې مکلف دي چې له هرمسلمان ورور سره نيک اخلاق ، ښه سلوک ،مناسب چلند او همدردي ولري ، داچې کله کله دمجاهدينو او دخلکو ترمنځ ددښمن لخوا موانع ايجاديدل او دستونزو سبب به وو هغه کاملا يو استثنايي حالت وو ، کنه په اصل کې هرمجاهد دخپلو ټولو هيوادوالو سره په اسلامی رويه کولو مکلف دی، دمجاهدينو لخوا دخلکو سره دښه تعامل ډيروالی څومهم علتونه لري ، يوداچې څرنګ چې دښمن له ډيروسيمو سږکال دتيښتې لاره خپله کړه مجاهدينو وشو کړای له خپلو خلکو سره ځان په عملي ډول نيږدې احساس کړي او ورسره مناسبې اړيکې ټينګې کړي چې يوه فطري غوښتنه ده ، دوم داچې دسږکال په پيل کې مجاهدين په داسي حالت کې دمعرکې ميدان ته داخل شول چې په عموم کې يې ددينې عالمانو او استادانولخوا اخلاقي روزنه ترسره شوې وه ،تربيتي کورسونه يې پای ته رسولي وو او په هغو کې له خلکوسره په شرعي اوانساني چلند ورباندي خورا ډير تاکيد شوی وو او عالي قدر امير المو منين هم داخترنو په بيغامو نو کي دخپل ولس سره په ښه چال چلند ډير تاکيد کړی ووچې الحمد لله موږ يې په ټولو مجاهدينو کې عملي تأثيرات وليدل او لکه څرنګ چې تاسويادونه وکړه مجاهدينو له خلکو سره خورا عادي او له عطوفته ډک چلند لاره ،بل پلو دخلکو ترمنځ دمنازعاتو او دعوو دحل په برخه کې خو اسلامی امارت مسئوليت لري چې خپلو خلکو ته داسلامی محاکمو او يا هم له نور ټولو مناسبولاروکاروا خلي او خلکو ته ترټول ممکنه بريده عدالت تامين کړې او کله چې خلک له عدلي پلوه مطمئن کيږي نو طبعا پريکړوته غاړه ږدي او خپل منازعات حل کوي او په دې برخه کې اسلامی امارت پخواهم خلکو ته ښه خدمات وړاندي کړي وو ، تاسو به خبر ياست چې اسلامي امارت دهر ولايت دپاره محاکمي لري او ور سره په څنګ کي ولايتي او دولسواليو په سطحه کميسو نو نه لري او هم داراز په ډيری ولايتو نو کي دشکايتو نو داوريدلو نمبرونه لري چې دا ټول دولس سره دخدمت په موخه جوړ شوي او تشکيل شوي دملکي خلکو دتلفاتو موضوع هم وخت په وخت داسلامي امارت په مجاهدينو پسي ددښمن لخوا دتبليغاتو په ښه راپور ته کيږي دې کار ته داسلامي امارت درهبری شوری لخوا خاصه توجه شوې او دنظامي کميسون په څنګ کي په دې ورستيو کي ور ته دداسي پيښو دبر رسی او تحقيق کولو خا صه کميټه تشکيل سوي چې ان شا ءالله اثرات به يې ښه وي ،او بل داچې کله چې دواک کچه زياتيږي او په ولس کې نفوذ وده کوي،نو ټولنيز چلند ته زياته اړتيا پيدا کيږي،له همدې امله اسلامي امارت داډول چلند اوس دځان مسوليت ګڼي ،څرنګه چې په فطري ډول موږ له خپل ولس سره په غم اوخوښي کي شريک يو نوبايد دشرايطو په سمون سره په فزيکي ډول هم ورسره شريک اووسو.

**پوښتنه:** داسې معلوميږي چې سږکال اسلامي امارت د جهادي نظامي اړخ ترڅنګ دخلکو پوهاوي ،

جلب او جذب ته هم خاصه توجه درلوده ددې اقدام راز په څه کې وو ؟

**ځواب:** اسلامي امارت داخپل مسولیت ګڼي چې دفرصت په ترلاسه کېدو له خپل ولس سره دهیواد دراتلونکي اوروانو حالاتو په اړه خپل نظر شریک کړي اومتقابل نظرونه واوري ،دافغانستان سرنوشت دخپلواکو افغانانو په پریکړه اوعمل پوري تړلی دی، بل لورته موږ نه غواړو دیرغل پخواکي ولاړ افغانان یوائې له فوځي لارې ترفشار لاندي راولو ، بلکې هغوي ته هم دخپلې لارې داصلاح پراخ مواقع ورکوو اوپه دې لاره کې موږ دجلب اوجذب موثر میکانیزم لرو چې په ریښتیا سره يې هم خورا ګټورې نتیجې درلودلې ، ډیرافغانان چې په غلط فهمیو سره ددښمن په څنګ کې ولاړ وو دحقایقو په درک کولو سره داسلامی امارت سره یوځای شول او خپلې وسلې او مهمات يې هم دمجاهدینو په واک کې ورکړل ،په عموم کې داپروسه دډیروخلکو لپاره مفیده واقع شوې ، زموږ ولس له یرغلګریز حالت سره لاس او ګریوان ده ، که دمجاهدینو لخوا ددعوت میکانیزم نه وي اودخلکو اصلاح ونشي ،دعوت ورنکړل شي طبعا به ددښمن په لوموکې پریوځي او خدای مکړه دبهرنیو لخوا به په آګاهانه یا غیر آګاهانه توګه استعمالیږي ، نو اسلامی امارت دخپل شرعي مسئولیت ددرک له مخې دخپلوخلکو لپاره ټول هغه شرائط اوظریفتونه برابروي چې دهغو دهدایت او اصلاح سبب ګرځي او دمجاهدینو لپاره هم دقوت او لا بریاوو علت بلل کیږي.

**پوښتنه:** تاسو دجلب او جذب دکمیسیون سرنې او ابتدایي لاسته راوړنې څومره اټکل کولای شئ او په خلکو يې تأثیر څومره وو؟

**ځواب:** له نیکه مرغه دې اقدام چې همدا اوس په لمړنیو پړاوونو کې دی په ولس کې مثبته روحیه ډیره تقویه کړه اوداشغالګرو اومزدوراونو تبلیغاتي غبارېې له مینځه یوړ ،په پراخه کچه مطرح ولسي شخصیتونه په اړیکه کې شول، همدا رازدجلب اوجذب له لارې ددښمن له لیکونه په سلهاوو عسکر ، پولیس ،اربکیان او نور کسان راووتل او له اسلامی امارت سره يې دهمکارۍ ژمنه وکړه ،دجلب او جذب یا دعوت او ارشاددکمیسون دمسؤلینو په حواله چې ۱۳۰۰ددښمن په صف کي ولاړ کسان ددښمن دصف څخه راجلا سوي، دوی په خپلو سیموکې مجاهدینو ته دخدمت پراخه زمینه برابره کړې اوله همدې لارې په داوطلبانه شکل مجاهدینو ته په سلهاوو میله سپکه اودرنه وسله او ډیر مهمات په لاس ورغلل اوددې کار لاس ته راوړنې دوام لري.

**پوښتنه:** داچې سږکال د روانې او مخامخ جګړې ترڅنګ مجاهدینو ددښمن په صفوفو کې نفوذ ته ډیره توجه وکړه ددې اقدام علت څه وو ؟

**ځواب:** څرنګ چې عالیقدر امیرالمؤمنین هم ټولو نظامي او د جلب او جذب مسئولینو ته لارښونه کړې وه چې ددښمن په صفوفو کې دنفوذ مسئله باید دپلانونو داجندا په سرکې ونیسې او ددښمن په صف کې له ولاړو افرادو نه يې هم غوښتې وو چې باید دخپل ټوپک شپیلۍ ددښمن په لور واړوي ، نودایو اړین ، په خپل وخت او پرځای اقدام وو ، موږ له دښمن سره دمخامخ جګړې ترڅنګ په طبعي ډول ددښمن په صفوفو کې دنفوذمسئلې ته هم په جدي توګه متوجه شوو ، ، ددې اقدام علت داوو چې دښمن له دننه تخریب کړو ، روحیات يې وځپو او په هرځای کې يې مصئونیت له خطرسره مخ کړو ، داچې موږ وتوانیدو چې ددښمن په صفوفوکې خپل ګڼ شمیر سرښندونکي افراد داخل کړو یوه لویه لاسته راوړنه ده اوله دې ناحې نه موږ په دښمن کلک اغیز پرې ایستلی ده ، تاسو پوهیږئ چې زموږ دنفوذي مجاهدینو دبریدونو په وسیله ځینې هیوادونه اړشول چې دافغانستان په یرغل کې له امریکا سره خپله یارانه پای ته ورسوي او دهمدې بریالیو بریدونو له امله امریکا پخپله هم له وارخطایي او لارورکۍ سره مخ شوه ، تاسو به لیدلي وي چې امریکایي



مشر اوباما ، دامریکا کانګریس ، دپنتاګان لوړ رتبه جنرالان او لوی درستیزان او دلته په هیوادکې پرغلګر قومندانان ټول په حرکت کې راغلل او دنفوذي بریدونو په اړه یې له خپلو ماتو شوو عسکرو سره غمرازۍ پیل کړه او دهغو دبایللو روحیاتو دبیا اعادې هڅې یې وکړې ، داپخپله ددې بریالیو عملیاتو ښه نتیجه ده ، اسلامي امارت لاهم هوډ لري چې ددښمن په صفوفو کې دنفوذ په برخه کې اوس له تجربوي حالت نه راووځي او په مقصودي ډول دې کار ته لاهم زور ورکړي چې همدا اوس اوس ددښمن په کلیدي او مهمو نقطو کې ډیرداسې مجاهدین ځای پرځای شوي چې دعملیاتو اجرا ته انتظار باسي.

**پوښتنه**: مجاهدینو څرنګ وشوکړای چې تر ډیره بریده په هغو عسکرو چې ددښمن په صف کې تنظیم شوي او کار کوي اومجاهدینو سره یې اړیکې ټینګول آسانه کار نه ده، اغیز ولرئ او هغوی مود شهادت ترپولې دې ته آماده کړل چې په دښمن بریدونو ته تیارشي ؟

**ځواب**: داچې مجاهدین وتوانیدل ددښمن په صف کې ددښمن افراد له خپله مسیره راوګرځوي اوجهاد کولو او قربانۍ ورکولو ته یې دعوت کړي ، داکار ګران ده خو په دې برخه کې مجاهدین غواړي چې هغه څه وکړي چې لازم او ضروري دي ، هغه افراد چې ددښمن په لیکو کې فعالیت کوي هغوې هم ځانونه هم دخپل دین او هیواد په اړه ځینې مسئولیتونه لري چې باید درک یې کړي او ددې کار لپاره موږ ځانګړي تکتیکونه وکارول چې وموشوکړای ددښمن منځته خپله مقدسه داعیه ننه باسو ، ددښمن له غولیدلو افرادو سره په انفرادي او خورا محرم شکل اړیکه ونیسو ، هغوي دعوت کړو ، دهغوې دمرستې او همکارۍ څرنګوالی ، کچه او توانایي معلومه کړو او بیا یې په اړه لازم اقدام وکړو ، موږ ددښمن په صفوفو کې خورا پیچلی او لوی نفوذ کړی او داپروسه تراوسه ډیره ښه په مخ روانه ده ، خوداچې ټول جزیات او څرنګوالي یې له پوځي محرماتو ځینې شمیرل کیږي نو نشو کولای دلته یې په اړه ډیر څه ووایو او ټول کارې طرز او دعملي کیدو ښه یې څرګنده کړو.

**پوښتنه**: یو خوددښمن دمطبوعاتي خبرو حالت ده که له دې تیرشو دمجاهدینو نفوذي بریدونو به په دښمن په واقعیت کې څومره بدہ اغیزه کړې وي ؟

**ځواب**: موږ په دې اړه مخ کې اشاره وکړه چې زموږ دنفوذ له ناحې نه ددښمن لینګې ولړزیدل ، هغوي پوه شول چې دلته حالت هغسې نه ده چې دوي یې په اړه فکر کړی وو ، دلته دهغو پر ضد هر وخت له ډیره نیږدې څخه هم اجرأت کیدلای شي ، داجګړه دومره آسانه نه ده او نه وه لکه پخوا به چې امریکایې حکومتونودنړۍ په نورو برخو کې ګټلې ، دلته بیل ملت او بیله اراده وجود لري ، نو ددې بریدونو اغیز په مراتبو له هغه څه ډیرلوی او قوي وو چې موږ یې په اړه ددښمن له خولې یا دنړیوالې میډیا دلارې اورو او پرې خبریږو ، اوس یې په وجه دښمن ددې پخپله پیل شوې جګړې له وتلونه عاجزه ده ، دسرسامۍ او بې جرأته کیدو په وجه جنرالان یې نشي کولای دحالاتو په اړه موقف ونیسي او یا اقلا خپلو خلکوته قناعت ورکړي ، داډیر دتعجب ځای ده چې هغه عسکریا پولیس چې امریکا ظاهراً پخپله روزلی وو ، هغوي تمویلول ، هغوې تشکیل کړي وو او هغوې امیدونه ورته لرل هغه وسله چې امریکایانو په لاس ورکړې بیرته په امریکایانو واړوي او دهغو په لاس جوړې شوې مرمۍ دهغو په سینو کې سرې کړي !!! داواقعاوارخطاکونکي حالت ده او له ښه مرغه امریکا اوس له همداسې حال سره مخ ده ، ددې بریدونو اغیز به ان شاء الله په اوږده زمانه کې چې دبریدونو ګراف لوړیږي لاهم زیات شي او موږ یې ددښمن دپوره ماتې لپاره دنورو مهمو تاکتیکونو ترڅنګ یوه ډیره ښه وسیله بولو او دلا پیاوړتیا په تکل کې یې له نیکمرغه اوس دابهیر نور هم په غوړیږدو دی تاسو به خبر شوي یاست چې په دې ورستیو کې یوې افغاني میر منې دکابل په زړه کې



يو امريكايي لوړ رتبه سلاکارپه خپله تفنگچه وويشت اوله منځه يې يووړ.

**پوښتنه:** داچې دښمن له افغانستانه دعسکرو دوتلو په اړه ضد او نقيض څرگندونې کوي او دکابل اداري مشران يې هم له وارخطا حالت سره مخ کړي آيا تاسو هم اوسنی وضعيت دغومره ددښمن په زيان بولئ ؟

**ځواب:** هو موږ له دې نه په مراتبو بدترحالت ددښمن لپاره پيشبيني کووا و په دې اړه دقيق را پورو نه هم لرو ، لکه څرنگ چې دوي څومره په غرور اومکر زموږ هيواد ته راغلي وو بيرته وتل به يې همدومره له ذلت او رسوايي نه ډک وي ، داساده او آسانه خبره نه ده چې دامريکا غوندې يو قوي هيواد او په نړۍ کې ترټولو لوی استکباري قوت دنړۍ په ظاهره ډيرو کمزورو خلکو لخوا ماتې وخوري ، دويتنام حالت هم داسې نه وو ، ځکه په ويتنام کې دامريکا په ضد ويتنامي مقاومت دهغه وخت دشوروي اتحاد له سرشاره مرستو او اکملاتو نه برخمن وو ، وسلې يې ددښمن سره دجگړې به ډگرې کې ورته وي ، مگر اوسنۍ ماته دامريکا لپاره ډيره غيرمترقبه ده ، اوس دوی ديوداسې ځواک لخوا ماتې خورې چې ډير فزيکي وجود يې نه لمس کيږي ، عسکر اوپوځ نه لري څو تنه سپيره مجاهدين لری خو اهداف يې لوړ او سپيڅلي دي ، په خپلو ناچيزه وسلو دامريکا له پرمختللو وسايلو سره پنجه نرموي اوپه پرلپسې توگه بريالي کيږي هم ، ددې حالت درک او تحمل واقعا آسانه نه ده ، نو ځکه امريکايان هم خورا ډير وارخطا دي ځکه دوي خپل غرور بايللی ، زوريې وخوت ، اقتصاد يې وځپل شو ، خلک يې له جگړې ترپوزې راغلل ، ۱۲ تريلونه ډالره پور پرې واوښت ، ۱۲ ميلونه وگړي يې بې کاره شول ، دکاپيټاليستي سيستم په وړاندې يې په وال سټريټ کې برالا او ښکاره مظاهرې وشوې ، چې داټول دافغانستان دجگړې برکت وو ، نو طبعا به دداسې حال په ليدو سره هر امريکايي کارپوه او مسئول شخص وارخطا کيږي او دلا بربادۍ دمخنيوي هڅې به کوي اوداکار له ځانه سره لکه امريکا غوندې يو هيواد ته چې هرڅه يې په ماده پرستې ولاړ دي واقعا وارخطا کونکی او په روحي لحاظ ځپونکې پايلې لري ، په لومړي سرکې امريکايان دلته له يوې ژورې استراتيژي سره راغلي وو ،هغوئ ددومره سختې اوپيچيده جگړې اټکل نه و کړی، ځکه دوي پرخپله پرمختللي تيکنالوجي هراړخيزه اتکا لرله، خو اوس دې جگړې هغوې نه يوازې له خپلو اهدافو پاتې را وستل، بلکې له نا اټکل شويو زيانونو سره يې مخ کړل، دفوځ روحيات يې لويدلي ،ولس يې نوره داجگړه نه غواړي اونه يې زغملای شي او تاريخي اقتصادي ضربه يې خوړلې، نوکه يې زړه غواړي کنه خو دوام يې نشي برداشت کولای ،البته زړه خويې داغواړي چې له جگړې هم خلاص شي اونفوذيې هم باقي پاتې شي، ددې لپاره هراړخيزې هلې ځلې هم کوي ترڅو يې دلته اډې پاتې شي، خوکه مجاهدين عمليات همداسې دايم وساتي نو داډو خوب يې هم بې تعبيره کيدای شي، اودکابل اداره خوديرغل دسيوري حثيت لري دامريکايانو له شتون سره يې شتون تړلی.

**پوښتنه:** پخوابه بهرنيو عسکرو هرکال په يوځای نه يوځای کې دمجاهدينو په ضد منظم اولوی عمليات پيل کړل ، چې ترډيره به يې دعوې کولې چې مجاهدين يې له ډيرو سيمو په شاکړي ، سږکال دښمن تنها ځان ساتلي يعني نوريې په دفاعي حالت کې قرار درلود ، دې وضعيت ته په کتو آيانور هم دښمن په افغانستان کې ځان گټونکی بلل شي ؟

**ځواب:** همداسې ده ، امريکايانو به پخوا هرکال دخپلې سلطې دپراخيدو په دود لوی عمليات تر مختلفو نومونو لاندې کول ، خو اوس يې حالت بدل ده ، هغه مهال ددوي داتصور ووچې گني داجگړه به وگټي ، مجاهدين به مات يا تسليم شي ، خلک به دمجاهدينو له مرستې لاس په سر شي ،خو اوس دوي هم هرڅه درک کړل ، هرڅه په چپه

طرف په څرخ شول ، پرمختګونه پرلپسې ناکام شول ، علمیات له تبلیغاتو او مدهشه وسلو کارولو ، باغونو او کلیونړولو سره سره بې پایلې وو ، نو طبعا به داسې څه نور نه تکراروي ، هغو عملیاتو چې امریکانو به کول دامریکایانو لپاره دومره درانه تلفات اومالي زیان درلود چې امریکایي اتکل کونکو به یې مخکې اټکل نه وو کړي ، نو مایوسه شول ، او اوس دځان ساتلو او بیرته دسالم وتلو فکر ورسره پیدا شوی ، داتول دلوی او تواناخدای جل جلاله فضل او کرم ده چې مجاهدینو ته یې دومره توان ورکړ چې لکه امریکا غوندې قوت یې په نړۍ کې مسخره کړ او دې حالت ته یې راورساوو ، هغه مهال به امریکایانو په دې ډول عملیاتو سره ښای فکر کاوه چې دمحدودو خلګو ترفشار لاندې راوستل به مقاومت خاموشه کړي،خو وروسته وپوهیدل چې دا یو ولسي مقاومت دی،هرکانې راته سنګرجوړیدای شي،ځکه له دا ډول عملیاتو مایوسه شول اودفاعي بڼه یې خپله کړه.

**پوښتنه**: په لویدیځ خصوصا په امریکا کې لوړ پوړې چارواکي له دې پوښتنې سره مخ دي چې آیا دوي دافغانستان جګړه ګټلې او که یې بایللې ده ، لکه په دا وروستیوکې دامریکا مرستیال جمهور رئیس جوبایډن له داسې پوښتنو سره مخ شو او له هغه ورسته په افغانستان کې دامریکا لوی قومندان جان آلن په دې اړه دامریکایي پارلمان له سختو نیوکو او سوالونو سره مخ شو ، راته ویلی شئ چې ددغې وارخطایي او تردد سبب په امریکایي ولس کې څه کیدای شي او ریښتیا وضعیت په کومه روان ده، بایلل که ګټل ؟

**ځواب**: زما په اند اصلي خبره په ګټلو او بایللو کې نده ،بلکې دبایللو په ښکاره منلو او نه منلو کې ده، ځکه څو واري دامریکالوړپوړو پوځي مقامونو لدې امله نیوکه لرله چې دجګړې دبایللو خبرې دې به میډیاکې نه خپریږي، خو ځینې نوریې بیا په دې اند دي،چې که موږ پخپله په ماتې اعتراف ونکړو ،نو تاریخ به مو پرده ونکړي اوبیابه مو دامریکا ولس په تاریخي دروغجنو ونوموي ، بل پلو امریکایي ولس اوس په خپلو چارواکو کاملا بې باوره شوی ده ، دهغوی مکرر دروغ یې تجربه کړل ، دهغو په دروغو وعدې چې دافغانستان دجګړې په اړه یې کولې په کراتو ناسمې وختې ، دهغو ملک په دننه کې دهمدې جګړې له امله له ناورین سره مخ شو ، زامن او خپلوان یې ووژل شول ، دټکس پیسې یې هدر لاړې ،نو نوردامریکا خلک په خپل حکومت او سیاسیونو باندې باور نشي کولای ، اوس صرف امریکایان په عموم کې په دې اختلاف لري چې ماتې خو یې هسې هم په اختیار کې نه ده بلکې په غیر اختیاري توګه ورسره مخ دي ، مګر باید داماتې آبرومندانه وي ، چې دامریکا نړیوال حیثیت ورسره تر یوه بریده خو ،خوندي وي ، اوسنی اختلاف ددې په سرده چې آیا دا ماتې باید رسما ومنل شي او که نه ،په همدې وجه یې هره ورځ وتلي او مشهوره جنرالان بدلیږي او استعفاوي کوي ، هریو هڅه کوي چې باید دی دماتې دصحنې شاهد نه وي ، جمهوري غوښتونکي په دې فکر کې دي چې باید ماتې د دیموکراتانو په زمان کې اعلان اوتکمیل شي ، سپین پوستي یې هیله کوي چې ماتې باید دتور پوستو به سرکړدګۍ کې برملا شي ، په همدې موخه یې جنرالانو داسې کړنې وکړې چې ددوي دګوښه کیدوسبب شوې ، هغه ټول څه چې دجنرال ډویډپیټریوس او جان الن دمستعفي کیدو سبب شول اخیتاري اوقصدي عمل وو ، دااوسني تورپوستي جنرال چې امریکا په افغانستان کې دخپلو ځواکونو دقوماندي اخیستلو لپاره په نظرکې نیولې له تورپوستو سره تړاولري ، چې په دې توګه که هره نادوده په امریکا دافغانستان دجګړې په اړه راځي مسئولیت یې باید په امریکا کې په دوهم نمبر خلکو وي !!! نور خو ماتې متحققه ده که امریکا غواړې او که یې نه غواړې حالات یې په ګټه نه دي.

# دادی دلویدیځ انصاف او بشردوستي؟!

شهیدزوی : ..........................................

کوچنیان دالله تعالی ډېر ستر نعمت دی ، په کوم کور کې چې دکوچني خندا او ژړا نه وي هغه کور دخوښیو نه خالي کور وي کوچنیان دمینې استازي دي ، دخوښیو غوټۍ دي ، دامن ګلان دي ، دفرحت او راحت غونچې دي ، دسکون نښې دي ، دمستقبل دامیدونو محور او دهر قوم ستره سرمایه ده.

که تړاو یې دهر قام او ولس سره وي خو کوچنیان کوچنیان وي ، معصومیت او بې ګناه توب ورسره تړلی دی ، نړۍ ته دهر راتلونکي کوچني سره دحق او صداقت استعداد ملګری وي خو دا بیا ناکاره چاپیریال ، بې لارې مور او پلار یا ناکاره روزونکي وي چې تر لویېدو ورته دظلم ، بی انصافۍ ،بدعملۍ ، تخریب او فساد بې شمېره لارې وروښایې .

پخپله کوچنیان پدې نه پوهېږي چې دښمني او نفرت څه شی دی ؟ عداوت ، حسد او کینه څرنګه تبارز کوي ؟د ورانۍ ، بربادۍ او قتل تورې وریځې څرنګه راپورته کېږی ؟په ابادو کلو او ښارونو ولې درانده بمونه راغورځول کېږي او ولې د بې ګناه انسانانو ژوند اخیستل کېږي ؟

کوچنیان پدې هم نه پوهېږي چې دعامه وژنو طوفان په انساني ټولنې ولې او څرنګه راځي او دبې شمېره بې ګناه انسانانو دوینو سیندونه دکوم هدف لپاره روانېږي ؟په څوک چې په سینه کې زړه لري دکوچنیانو مظلومیت نه شي زغملای .

دکوچنیانو معصومیت او اوښکې دکاڼي په څېر کلک زړونه هم ویلې کوي او غټ سخت زړ ی ، ضدي او سرکش انسان هم الفت او شفقت ته اړباسي . دکوچنیانو همدې معصومیت ته په پام سره اسلام د دښمن په خاوره کې د دښمن دکوچنیانو د وژلو نه منع کړی او د دښمن مقابلې ته د مجاهدینو داستولو پرمهال به راشده خلیفه ګانو مجاهدینو ته داسلام په دې لارښوونو دعمل کولو او ورباندې دټینګ پاتې کېدلو کلکه توصیه کوله .

خو متأسفانه چې په انساني ټولنې کې څه وحشي صفته انسانان داسې هم شته چې دهغوئ لپاره دکوچنیانو معصومیت هم یو بې معنی شی دی ، په مجموع کې ننی لویدیځ ، بیا په ځانګړې توګه دامریکا متحده آیالات ، یهودي قوم او په خاصه توګه په فلسطین کې د دوئ غاضب اسرائیلي دولت دمسلمان ولس سره په حسد بعض عداوت او سختې دښمنۍ کې تر هغه سرحده رسېدلی چې دځوان او بوډا ، نر او ښځې ستر او کوچني امتیاز و نه پکې ښخي له منځه تللي او ټول یې یو ډول دظلم او وحشت ښکار دي .

او ډېر بد اړخ خویې دا دی چې دا ظلم او وحشت هم د کوم وحشي غور ځنګ له لورې نه بلکې د دولتونو له لورې تر سره کېږي ، غزې کې چې دمېرمنو او کوچنیانو په شمول د ۱۵۰ نه زیات فلسطیني



مظلوم مسلمانان شهیدان او د ۱۱سوو نه زیات ټپیانو شول نو داڅه دعامو یهودیانو او مسلمانانو ترمنځ داخ وډب په نتیجه کې نه بلکې دیو ستر دولتي وحشي یرغل په نتیجه کې داقتل عام رامنځته شو ، عراق کې هم دامریکا په مشرۍ کې دنړدې ټول لویدیځ د دولتونو دیرغل په نتیجه دیو نیم میلون په خواوشاکې بې ګناه عراقي مسلمانان ووژل شول .

او چې تېر کال دقذافي رژیم له منځه وړل مقصود ونود ناټوپه نوم دلودیځ دستر اتحاد په بمباریو کې تر ۸۵ زره پورې بې ګناه لیبیائی مسلمانان شهیدان یا ټپیان شول .

**سږکال چې په برماکې دمسلمانانو دعامه وژنې په لړ کې بودایې وحشیانو ددولت په مرسته تر ۴۰ زرو پورې مظلوم مسلمانان ووژل د ۵ زرو نه زیاتې مسلمانی مېرمنې دجنسي تېریو ښکار شوې او په سونو زره یې بې کوره شول ، دمسلمانانو بې شمېره کلي وسوځل شول نودې ټولو جرمنو مسؤلیت هم ځکه دلویدیځ او په سر کې یې امریکا په غاړه دی چې دمسلمانانو دبې دریغه وژلو جرأت خلکو ته همدوئ ورکړی او دنړۍ په هر ګوډ کې چې وژل کېږی د دوئ په لمسون وژل کېږي ، که دامریکا اوټول لویدیځ لمسون نه وای نو په لیبیا کې چې دسونو انسانانو په وژل کېدو ناټوځانته پر لیبیا دیرغل حق ورکاوه نو په برماکې د ۴۰زرو انسانانو په عام قتل ولې چوپه خوله دي او دبرما د دولت پرضد یې هیڅډول اقدام ونکړ ؟**

او دامریکا په مشرۍ کې چې دغربي دولتونو نه دجوړ صلیبي اتحاد له لورې زموږ هېواد اشغال شویدی نو هر څوک وینې چې دظلم او وحشت بازار څوتنانو نه بلکې دولتونو ګرم کړیدی ، دهمدې دولتونو قواوې دي چې په تورو شپو کې کورونو ته وراوړي خلک دسختی وېرې او ترهې سره مخامخ کوي ، څوک وژنی او څوک له ځانو سره لاس تړلي خپلو زندانونو ته بوځي

همدوئ دي چې په هېواد کې دننه اوپه قبائلي سېمو کې کورو نه بمباروي او پکې دمېرمنو او کوچنیانو په شمول هره ورځ بې ګناه مسلمانان وژني ، دلته دبشرټول حقوق او پدې اړه جوړشوي ټول اصول دوحشي فوځیانو دبوټو نو لاندې کېږی خو نه یې دنړۍ کوم قانون ، نه دبشر دحقوقو کوم تنظیم او نه هم دملګرو ملتونو اداره دغریبو افغانانو په وړاندې ددې سترو ظلمونو او وحشتونو منع کولای شي ، نه یې دمنع کولو کوښښ کړی نه یې هم په مقابل کې کله دحق اواز پورته کړای او نه یې هم کله پدې اړه څرنګه چې پکار دی هغسې تشویش ښکاره کړای ، ته به وایې چې په ټوله کې پر ټولو مظلومو مسلمانانو او په ځانګړی توګه پر غریبو افغانانو دهر ظلم او وحشت عام اذن دې وحشیانو ته ورکړشوی وي .

خو لنډه داچې دنړۍ په هر ګوډ کې چې مسلمانان دظلم او وحشت ښکار دي نو دمسؤلیت یې دامریکا اونورو غربي دولتونو په غاړه دی

په بمباریو کې دبوډاګانو ، مېرمنو او کوچنیانو په شمول دګڼ شمېر ولسي وګړو شهادت ، په تورو شپو کې په کورونو وراوړیدل ، پکې دکوچنیانو او مېرمنو ویرول اوپکې دځوانانو شهیدانول یا زنداني کول خو نن په افغانستان کې هغه جرمونه دي چې نه یې څوک پوښتنه کوي او نه ورته دجرمونو په نظر کتل کېږي تر دې چې خبره اوس زموږ دمعصومو کوچنیانو تر زنداني کېدو راورسېده .

محترمو لوستوالو ته به معلومه وي چې غاصبو امریکایانو منلی ده چې د ۲۰۰۸م کال نه راپدېخوا یې ۲ سوه افغان کوچنیان د دښمنو زندانیانو په حیث په بګرام زندان کې زنداني کړي وو چې اوس یې د دوئ ګڼ شمېر افغان دولت ته سپارلي دي او کم شمېر لاهم د دوئ سره په بګرام کې زندانیان دي .

**خو دبشري حقونو یوې نامتو فعالې ((ټینااېم فوسټر)) ویلي دي چې دامریکایانو دوینا برعکس په سونو نه بلکې په زرونو افغان کوچنیان اوس هم دامریکایي فوځیانو سره په بګرام کې زندانیان دي چې یو اځې ددې لپاره زنداني شوید ي چې پر ضد یې و نه جنګېږي او دجنګ دډګر نه لرې پاتې شي، ددې کوچنیانو حالت دتشویش وړدی ځکه چې د دوئ رواني او جسمانی صحت ته هیڅ پاملرنه نه کېږي ا ود کوچنیانو دقیدپه اړه دنړیوال قانون برعکس دیو کال نه د ډېرې مودې لپاره په زندان کې ساتل شویدي چې دا ډېره دتشویش وړه خبره ده .**

نو مورې زیاتوي چې ددې مسئلې یو دردونکی او دلازیات تشویش اړخ دادی چې پدې کوچنیانو نه کوم جرم ثابت شوی او نه هم په عملي جنګ کې نیول شویدي .

تینا ایم فوسټر زیاتوي چې دبګرام زندان نه دلیدنې پر مهال یې ولیدل چې په زندان کې د کوچنیانو شمېر ۲ سوو نه ډېر زیات وچې پکې د ۱۱ او ۱۲ کلونو کوچنیان هم وو خو امریکایي فوځیانو یې ما ته دعمرونو دثبت اجازه رانکړه .

**همدا راز دامریکا اړوند دبشری حقونو ((امریکن سولی لبرټی یونین)) نومي ادارې مشر جمیل داکوار په بګرام کې د زنداني شویو افغان کوچنیانو په اړه دخپلی اندېښنې څرګندولو په ترڅ کې ویلې دي چې ,, ددې کوچنیانو عمرونه ۱۰ او ۱۴ کلونو په منځ کې دي ، متأسفانه دکوچنیتوب په دې کم عمر کې شکنجه شوي او ربړول شوي هم دي ،،**

دیادولو وړ ده چې په ۲۰۰۸ کال کې کې دامریکا د دولت له لورې دجنیوا کنوانسیون ته په وړاندې کړې راپور کې د ۵ سوه عراقی کوچنیانو او یو اځې د ۱۰ افغان کوچنیانو د زنداني کولو اعتراف کړی و خو اوس یې دروغ ښکار شول او پخپله یې اعتراف وکړ چې ۱۰ نه بلکې ۲ سوه پورې افغان کوچنیان یې دبګرام زندان کې له ځانو سره زنداني کړیدي .

څرنګه چې دبشري حقونو فعالانو ښه په څرګندو ټکو ویلي دي چې شمېر دد ۲ سوه نه ډېر زیات دی موږ هم همدا عقیده لرو چې داشمېر به زرونه وي او دتېر په څېر به د ۲ سوه خبره هم دروغ ثابته شي .

شمیره کمه وي یا زیاته چې خبره دظلم وي نو دا ډېر ستر ظلم دی دنړۍ دیو قانون له مخې هم د ۱۱ او ۱۲ کلونو کوچنی مجرم نه شي ګڼل کېدای بیا خصوصًا چې په دې کوچنیانو د کوم جرم تور هم نشته او نه هم په روان جنګ کې نیول شویدي .

ډېره دتعجب وړ خبره ده چې کله په پاکستان کې په ملاله نومي یوې انجلۍ برید شوی و او پکې ټپي شوې وه نو امریکا او ټول لویدیځ نړۍ داسی په سر راخستی وه تا به ویل چې په ټول انسانیت یرغل شوی او دټولی نړۍ امن ته سخت خطرونه متوجې شویدي ، لویدیځو رسنیو اسمان په سر راخستی و ځکه چې په نړۍ کې داسلام پالو بدنامول ، په وزیرستان کې دپاکستاني فوځ رابښکېلول او پاکستان دلازیاتو مشکلاتو سره مخامخ کول مقصود و خو په برماکې چې په زرونو ملالې ووژل شوې او زرونه دجنسي تېریو ښکار شوې همداراز په غزه کې په سونو ملالې داسرائیلي وحشت ښکار شوې نو همدا لویدیځ بیا ړوند کوڼ و نه یې ددې سترو ظلمونو په اړه غندنه وه ، نه یې پرضد دحق او از پورته کول او نه هم عملي اقدام ځکه چې دظالمو او وحشي بودایانو او اسرائیلو له لورې دمظلومو مسلمانانو پر ضد ظلم او وحشت دلویدیځ دخواهش پوره کېدل و .

او اوس د امریکایي فوځیانو په بدنام زندان کې دګڼ شمېر افغان کوچنیانو دزنداني کېدو دموضوع دکشف په اړه هم لویدیځ دمنافقت ښکاردې ، ۲ سوه خو ډېره ستره شمېره ده که دلویدیځ ۲
کوچنیان دکوم اسلامي قوي دولت یا کوم اسلامي غورځنګ له لورې دداسی ظلم ښکار شوي وای نو مغربي دولتونو ، تش په نامه دبشري حقوقو ادارو او لویدیځو رسنیو به نړۍ په سرا خستې وای او ټول مسلمانان به یې وحشیان او ظالمان ګڼل خو چې کله دزرونو مسلمانو کوچنیانو په وړاندې دستر ظلم خبره راشي نو بیا دوئ ټول اخرس شیطانان وي او هیڅوک نه پوښتي چې امریکایي فوځیانو داکوچنیان دنړۍ دکوم قانون له مخې زندانیان کړیدي ؟پدې اړه امریکا ولې دنړۍ منل شوي اصول ترپښو لاندې کوي ؟د اوږدې مودې لپاره داکوچنیان ولې دعلم دحاصلولو نه بې برخې پاتې کړل او ترټولو مهم داچې په دې دومره ستر وحشت امریکا ولې نده پښېمانه او ترې لاس ولې نه اخلي ؟دادی دلویدیځ انصاف او دا یې بشردوستي

عبید "تنویر"



# مولوي فضل الرحمن پکتیاوال رحمه الله

زمونږ په افغاني ټولنه کې اوس هم متاسفانه دانیمګړتیا په خپل ځای پرته ده چې دخپلو اسلافو او دیني نوماندو کارنامې ، دژوند قیمتي شیبې او غوره خدمتونه څوک نه لیکي او نه څوک اهمیت ورکوي اوکه کوم یو دردمن قلموال پیداشي ترڅو دیوې سیمې اسلاف او مشاهیر راټول اوجمع کړي په منابعو او معلوماتو برابرولو پسي یې دومره لالهانده اوستومانه شي چې په پای کې هغه له خپل کار څخه دمایوسی او نا امیدی حدته ورسیږي ، ځکه چې یامستند معلومات له چاسره نه وي اوکه وي هم ډیرکم خلک دلچسپي ښیي چې دتاریخ دیوه امانت په توګه دخپلو نوماندو کړنې اوکارنامې ثبت اوولیکل شي !!

دافغانستان اوسیمې په سطحه پیژندل شوي علمي او روحاني څیره جناب ( میرصاحب عبدالستار اغا ) چې مشهور په میرصاحب د( مغلخیلو ) ووهغه په (   ۱۲۷۱ ) لمریزکال دلوګر ولایت په مرکز پادخواب شانه کلي کې سترګې دې نړۍ ته پرانیستې او په ( ۱۳۵۴ ) لمریزکال  وفات شوي ،هغه دخپل وخت هغه هستي وه چې په عوامو او خواصو کې مقبول ، دشریعت او اسلامي سیاست چلولو روحاني رهبر ، دفتوا مرجع او دوحدت سمبول وو ، دافغانستان دهرکونج او کنار علمای کراموورته درناوی او عقیدت لاره ،په کومه موضوع کې به یې چې خبره وکړه ، علمای کرامو او مشایخو به ورته لبیک وایه ، په خپل مهال یې دومره ستر خدمتونه سرته رسولي چې که راټول شوي او دتاریخ حافظې ته هسې مشت نمونه خروار هم سپارل شوي وای نو کتابونه کتابونه پرې لیکل کیدای شوی ، خو داچې دمرحوم میرصاحب داسلامي مبارزي ،



درس ، تدریس او په ټولنه کې دهغه دپرعظمته رول او کارنامو ټکی چا خوندي نکړل ،خصوصیتونه اوځانګړتیاوي یې چادقلم نوک اوراتونکي نسل ته ونسپارلې ؛ زه اوس فکر نکوم چې عوام څه چې داوسني دور علمای کرام دې هم کماحقه میرصاحب (علیه الرحمه ) وپیژني او له نورانیت او ثمرو ډک ژوند اوخدمتونو څخه دې خبر ووسي ؛ همداسې دهیوادنور

افغاني علمای کرام او مشایخ چې هم دمنبر او هم دسنګر او عمل اتلان وو همداسې خاموشه پاتې شوي !

په داسې حال کې چې داسلافو او نیکو مشاهیرو تاریخ لیکل او راټولول نه داچې کوم دیني حرج اوستونزه نلري ، بلکې داسلام مقدس دین دغه هڅې ستایي او په ترسره کولوېې حکم هم کوي ، ځکه تاریخ ، دپیښو ، حوادثو ددقت او تعمق نوم دی ، تاریخ دعبرت او حقایقو موندلو او ارزولو منبع دی او تاریخ دمفاخرو ، اتلانو ، اسلافو ، فقهاوو او علماوو دثبت او پیژندلو زریني پاڼې دي ، څوک چې تاریخ لري هغه هویت لري ، هغه ملت لري او نسل لري ، هغه ویاړونه لري ، هغه هیبت لري او هغه قوت او حریت لري ، دفقهاوو او علماوو تاریخ دادی چې دهغوی اثار ترجمه او ولیکل شي ، دهغوی غوره خصلتونه اوعلمي کارنامي ثبت شي ، دهغوی محاسن او مشروع تفردات خلکو ته بیان شي ، ځکه فقهاعظام او علمای کرام داسلام محکمې ستني ، دایمان او عقیدې مراندې ، دالهي قانون او شریعت مشعلونه دي ،نو ځکه باید دهغوی دژوند غوره لحظې اوکړنې ثبت او دتاریخ جز وګرځي ، لکه چې امام طبري په خپل کتاب ( تحقیق الصفا ) کې ځینوسلفوته په منسوب یوه اثر او قول کې وایي من ورخ مؤمنا فضلا عن عالم عامل فکأنما أحیاه، ومن أحیی مؤمنا فکأنما أحیی الناس جمیعا. انتهی. یعني څوک چې دیوه مومن باعمله عالم اوفاضل تاریخ ولیکي ،داسې ده لکه چې هغه یې ژوندی کړي وي اوڅوک چې یو مومن راژوندی کړی داسې ده لکه چې ټول خلک یې ژوندي کړي وي

زمونږ دپورته مدعا په رڼا اوکتار کې له شک پرته دهیواد په سطحه نومیالي او جید دیني عالم مرحوم ( مولوي صاحب فضل الرحمن پکتیاوال) هم راځي اودایې حق جوړیږي ترڅو دهغه دمقبول ژوند غوره خصلتونه ،خدمتونه اوکمالات مشت نمونه خرواروارزول شي اودرناوی یې وشي

فضلیت مآب مرحوم مولوي صاحب فضل الرحمن پکتیاوال ، دافغانستان دعلمای کرامو ، مشایخو او دیني طبقې کې هغه نوم او هستی ده چې ماته یې دعلمي قوت ، دیني ذخیرې او خدای ورکړې مهارت ترڅنګ دهغه افغاني غرور ، شاهانه فقر او ولس مزاجي هم ډیر خوند راکاوه او ویاړ مې پرې کاوه ، ځکه مولوي صاحب یواځې داقوه او او استعداد نه درلود چې دسوونو طالبانو په منځ کې دې ددیني علومو او ورپورې تړلو سختو فنونو مغلق ځایونه حل او دطالبانو پوښتنوته دې په عجیب انداز ځواب ووایي ، بلکې دا ملکه او حوصله یې هم لرله چې دولس په ژبه وغږیږي ، هغوته له پنده ډکې خبرې وکړي او غوره حکایتونه ورته ووایي چې زما په فکر دادقدرمن مولوي صاحب یو په زړه پورې انداز اود جامعیت بیلګه شمیرل کیږي .

لکه پورته مو چې یادونه وکړه مولوي صاحب د بېساري علمي قوت او استعداد ترڅنګ ولسي رنګ او خوند هم درلود ، نوراځی چې دده په اړه دهغه دیوه نامتو شاګرد دخولې هغه خبرې اوحکایت چې څنګه یې دمنقولو او معقولو یوه لویه ذخیره په ولسي جامه او قیافه کې پیداکړه اوبیایې یو ستره پانګه ترې واخیستله ولولو:

دمرحوم مولوي صاحب دغه شاګرد دافغانستان داسلامي امارت په مهال دوزیرانو شورا مرستیال او دختیځو ولایتونو تنظیمه ریس ښاغلي مولوي عبدالکبیر صاحب دی ، مولوي صاحب عبدالکبیر چې دطالبۍ په دورې کې یو ممتاز طالب او په طالبی کې مدرس وو او بیا چې کله فارغ شو نو یو پیژندل شوي برلاسی مدرس او جید عالم ترې جوړ شو ، هغه دمولوي صاحب فضل الرحمن پکتیاوال په باب یوه ورځ داسې حکایت کاوه : ده دتیرجهاداوهجرت په مهال داوسنی خیبرپښتونخوا صوبی دافغان مهاجرینو په پنډ غالی ( جلوزو- چراټ ) دحرکت انقلاب اسلامي لخوا دجوړې شوي ( محمدیه ) مدرسې کې درس وایه ، دمعمول له مخې مو دماسپیښین له لمانځه ورسته له ملګرو سره دویل شوو کتابونو تکرار

کاوه او زه چې کومې درجې کې وم ملګرو به دتکرار حق ماته راکاوه ، یو ماسپښین مو دمنطقو مغلق کتاب ( میرزاهد ) تکرار شروع کړ چې په منځ کې یو سپین ږیری کاکا رانیږدې شو اوزما تکرارته یې ښه په سوچ غوږکیښود ، مااونورو ملګرو چې دهغه ولسي شکل ، سوقي اوهیئت ته وکتل او بیا زه په دقیق ډول دده غوږ ایښودو ته ځیر شوم نو غالبا دتکرار په منځ کې به مې ملګروته په کنایه کې ویلي وي چې (کاکا خو داسې غو ږ ایښی ته به وایې چې یاښه پرې پوهیږي او یایې دثوا ب په نیت سماع کوي ) زما کنایې اوددرس دملګرو څه تبسم سپین ږیري کاکا نور هم جدي اومتوجه کړ تردې پورې چې غږ یې راباندې وکړ چې طالبه ! کتاب دې سم ونلګاوه ؛ مونږ چې دکاکا دغه خبره واوریده نو چندانې التفات مو ورته ونکړ ورته مو وویل چې کاکا هسې دې غو ږ ورته ایښې نه به ثواب وګټې او نه به یې هم په سر او پای پوه شي ، کاکا بیا راباندې ږغ کړ چې کتاب دې سم ونلګاوه ، مولوي صاحب عبدالکبیر ویل چې کله مو دکاکا دغه بیابیا ناره ولیده نو تکرار مو بس کړ ورته راوړاندې شو چې ښه کاکا راځه ته یې ولګوه چې پرمونږ نیوکې کوي ، مولو ي صاحب ویل ،کاکا راته وویل چې کتاب رادیخوا کړه چې حق یې درته اداکړم ، کتاب مو چې دکاکا مخې ته کیښود دکتاب عبارت ، حاشیه او نکتې یې داسې سره ولګولې چې دزړونو زنګ مو لیري او یو نا انشا ربط مو واورید !!

مولوي صاحب عبدالکبیر ویل هماغه وو چې مونږ ته دغه سپین ږیری کاکا یو برجسته عالم وخوت پرې راټول شو سړی مو راکلک کړ ، هغه خپل ځای ځایګي راته وښود او مختصره پیژندګلوي یې وکړه ، له هغه ورسته ورپسې شو چې همدغه کتاب ( میرزاهد ) به خامخا راته شروع کوي چې بالاخره مو مولوي صاحب فضل الرحمن مجبور کړ چې هم کتاب راته شروع کړي او هم مو دمدرسې په اداري زور راولوړي چې مولوي صاحب په مدرسې کې دممتاز مدرس په صفت مقرر کړي چې همداسې وهم شول !

دقدرمن مولوي صاحب یوه مهمه ځانګړتیا داوه چې خپل متدین ولس ورباندې ډیر ګران وو ، دهغوی غوره اخلاق ، غیرت ، شجاعت او کلتور ډیر خوند او لذت ورکاوه ، ځان یې دهمدغې فقیرې خوباشهامته ټولنې له نبضه راولاړ تن باله ، عوام مسلمانان یې له ځانه جلا برخه نه شمیرله ، کوشش یې کاوه یې چې ولس او عوام له علمای کرامو او اهل علم سره نور هم نیږدیوالی او صمیمیت پیداکړي او یوبل سره وروڼه وروڼه وبولي ، همداوجه وه چې دمولوي صاحب له پندونو او متلونو ډک شخصیت وو چې په ساتو ساتو یې هم خوږ مجلس په چا نه درنیده

مرحوم مولوي صاحب ، یومستغني شخصیت وو ، خپل علم یې دچادمادي طمعې مرهون منت نه ګرځاوه ، څوک به چې کورته ورغلل ، په خوږمجلس سربیره به یې ارومرو دهغه مناسبه مهمان نوازي کوله ، په موټراوهوټل کې به چې کوم طالب اوعالم ورسره یوځای اومخ شوچاترې دموټرکرایه اودهوټل دخوراک لګښت نشوړومبی کولای ، په مشوره ورکولو کې صریح اوخواخوږی وو ، کله چې دافغانستان اسلامي امارت په افغانستان واکمني وغوړوله مشرتابه اوقیادت ته بې برالاخبره کوله اوحقایق به یې ورته په لوړاواز ویل

اروابناد مولوي صاحب چې شاوخوا **۵۵** کاله یې ددیني علومو په تدریس تیرکړل او بې شمیره شاګردان اوزبده علمای کرام یې افغاني ټولنې ته وړاندې کړل بالاخره د ۸۲ کالو په عمر دهجرت په دیارکې دجمعې په ورځ دمحرم الحرام په (29) نیټه وفات شو(اناالله وانااليه راجعون )

دمرحوم مولوي صاحب جنازه دپیښورپه ښارکې دزرګونو تنوپه ګډون دهغه دمشرځوی مولوي صاحب شمس الرحمن په امامت اداوبیایې جنازه دپکتیاولایت دسید کرم ولسوالی ته یووړل شوه او دکوسین په پلرنی هدیره کې خاوروته وسپارل شوه ، یاددې تل ، درجې دې اوجنت الفردوس دې نصیب وګرځي

# سال 2013م ومسؤلیت های آیندۀ افغانها

ذبیح الله "مجاهد"

چون سال ۲۰۱۲ م گذشت ، دست آوردها پیشرفت و تحولات درعرصه های نظامی به نفع مجاهدین به میان آمد ، مجاهدین نسبت به تمام سالیان قبل قوت ونیرومندی خویش را در این سال به نمایش گذاشتند ، عملیاتهای بزرگ ودرس دهنده علیه دشمن به اجرا در آمد ، خارجیهای اشغالگر تلفات سنگین را متحمل شدند گرچه اعتراف نه میکنند ، مجاهدین با وصف تمام تبلیغات علیه آنها یک پارچه گی ، نظم ، نسق و تعهد فرد فرد خویش را به راه مقدس خود ثابت ساختند ، تحرکات به نام قیامها برضد مجاهدین کوبیده شد وچهره های منحوس افراد فرصت طلب چه در چهار چوب فعالیت های دشمن و چه هم در عرصه تبلیغات به نفع دشمن برملا شده وبه ناکامی رو بروشدند و اینک مجاهدین سال ۲۰۱۳ م راهم با سر فرازی آغاز نمودند ، گرچه عملیات قبلی هنوز در جریان است ، ولی دست آوردهای بعدی به سال ۲۰۱۳ م نسبت داده خواهد شد .

این سال از چند زاویه برای افغانها ی مسلمان مورد اهمیت قراردارد ،

اول اینکه این سال آغاز گریز وفرار دشمن است ، دشمن در طول این سال سعی وتلاش خواهد کرد که تمام تجهیزات نظامی خویش را از راهای زمیني از افغانستان خارج نمایند ، این تجهیزات که معادل ۳۲ میلیارد دالر امریکایی پنداشته میشوند از راهای مهم افغانستان به کشورهای هماسه بعدا به لب دریاها فرستاده خواهد شدند ، افغانهای مجاهد در حین اجرای عملیات های گسترده خویش توجه جدی خویش را برای از بین بوردن ویا غنیمت نمودن این افزار های حربی نیز معطوف بدارند ودر این راستا سعی وتلاش های جدی را به خرچ دهند ،

دوم اینکه در این سال مورال همه عساکر خارجی باصفر ضرب بوده و در سراسیمه گی کُلی به سر می برند ، مجاهدین سعی نمایند که عملیاتهای خاص را بخاطر کوبیدن دشمن خارجی در هرجای ممکن افزایش دهند ، چون کوبیدن بیشتر دشمن درحین فرار سهل خواهد بود ، مجاهدین با مقاومت کمتر آنها مواجه خواهد شدند و در نهایت مرگ ومیر دشمن زیاتر خواهد شد .

سوم اینکه مراکز بزرگ دشمن باید هدف موشک های بیشتر قرار گیرند ، تا از یک سو دشمن در داخل مراکز خویش تلفات بیشتر را متحمل شوند و از طرف دیگر این اقدام سبب خواهد شد تا دشمن جهت جلوی گیری موشک باری از مغاره های خویش بدر آید وبه این گونه موارد حملات و انفجارات علیه آنها مهیاء خواهد شد .

چهارم اجیران داخلی چون بعد از پابه گریزی باداران خویش دست وپاچه خواهد شدند باید عملیات علیه آنها افزوده شود و بیشتر از قبل باید مورد حملات مجاهدین قرار گیرند مهم از همه توسط ماین های زمینی

وکنترول شده ، آنها افرادی اند که صرف بخاطر دریافت چند پول با مجاهدین می رزمند ، به وارد نمودند فشار اندک نظامی به آسانی میتوانیم آنهارا به تغیر مسیرخویش سوق دهیم و برای ایشان نشان دهیم که اگر از راه خود که حمایت از اشغال کشور وهمکاری با کفار است منصرف نشوند زندگی آنها جدا درمخاطره قرار دارد ، در ضمن به آنها باید دعوت بیشتر داده شود تا از صف دشمن بیرون آیند وبا برادران مجاهد خویش بپیوندند ، این عمل از یک سو زندگی افغان های فریب خورده را نجات خواهد داد که مطلوب بزرگ است ، و از طرف دیگر حلقهء فشار علیه دشمن خارجی در حین گریز تنگ خواهد شد که ممکن سبب شود تا دشمن از درون صفوف خویش نیز بیشتر از قبل زیر حملات کوبینده قرار گیرد وجان سالم از افغانستان نه برد .



پنجم مجاهدین در برخورد خویش با مردم باید جدا توجه ء داشته باشند ، سعی نمایند که به درد های یازده ساله آنها جبیرهء بگذارند و از آنها نوازش نمایند چون همین ملت غیور ما بوده که من حیث پدر ، برادر ، پسر ، خواهر ، خانم و دختر مجاهد رنجهای را متحمل شدند ویا هم همکاری بی شایبه را بامجاهدین داشته اند و همین تحمل آنها سبب میشود که کشور آزاد شود و مردم زیر سایه نظام والای ارزشهای اسلامی وانسانی تسکین و آرامش خویش را به دست آرند ، جوانان مسلمان افغان که در هرجا و هربخش از زندگی خویش مصروف کار وفعالیت هستند نیز باید بدانند که آینده کشور مرتبط به آنها است آنها باید در چهار چوب اصول اسلامی ورهنمودهای دینی خویش سعی ورزند تا خود را آمادهء بار سنگین کشور سازی ، نظام سازی و جبران نمودند خسارات هنگفت توسط نیروی جوان خویش نمایند ، و از دادن هیچ نوع قربانی در این راه دریغ نه ورزند ، این جوانان امروز اند که آینده این کشور را می سازند و به مردم خویش مصدر خدمت میشوند ، آنها باید اولاً ذهینت خویش را درست نموده وخویشتن را با دستور قرآن واسلام عزیز بیارایند ، بعدا آنها باید بادین و ناموس ملی خویش تعهد واقعی داشته باشند ، آنها باید در صورت لزوم بار دیگرهم اگر نیاز بود از ارزشهای دینی ، سرحدات کشور ، نوامیس ملی ، وحدت مردم و تمامیت ارضی خویش مردانه وار به دفاع آمده باشند و درس برادران وپدران مجاهد امروزی ودیروزی خود را به آینده گان خویش نیز انقال دهند تاباشد که آنها نیز در دفاع از دین خویش آمده شوند و میهن ما برای همیش کشور راد مردان تاریخ و مسلمانان واقعی در کره زمین شناخته شود ، گرچه تاحال این ملت در راستای دین پرستی و قربانی ها در راه خداوند متعال بدیل ندارد مگر بخاطر محافظت همین وجاهت و دست آوردها نیاز به توجه بیشتر نیز است.

# آیا ممکن است اسلام از طریق نظام انتخاباتی نافذ گردد؟

مولوی عبدالهادي "مجاهد "

درجهان اسلام شماری ازاحزاب اسلامی که از فلسفۀ سیاسی وفرهنگی غرب متأثر گردیده اند، وراه و روش اقامه نظام اسلامی را از سیرت ومنهج رسول الله ﷺ نمیگیرند ،بلکه میخواهند نظام اسلامی را ازطریق دیموکراسی غرب اقامه کنند،ودرین راه اینهانیز مانند احزاب سیکولر (بی دین ) وسائل دیموکراتیک را به کار می اندازند. در انتخابات خود راکاندیدمیکنند، واز مردم به نام(دین اسلام) رأی می طلبند. این مردم ازیکی از سه حالت ذیل خالی نیستند:

۱ – ممکن است اینها دیموکراسی را به صورت درست نمی شناسند. زیرادرنظام دیموکراسی حاکمیت علیا ووضع قوانین حق مردم است، نه حق الله جل جلاله، بدین معنی که در دیموکراسی مردم مختار اندکه هر نوع نظام وقوانینی راکه برای خود مناسب ومفید میدانندبسازند، درحالیکه درنظام اسلامی حاکمیت علیا و تشریع تنها و تنها حق الله جل جلاله است.

در دیموکراسی فیصله نهائی از مردم می باشد، نه از الله جل جلاله ،پس مدعیان تنفیذ اسلام ازطریق دیموکراسی چگونه میتوانند که نظام الله جل جلاله را از طریق دیموکراسی نافذ نمایند؟

۲ – ممکن است که این مردم اسلام را بطور صحیح نمی دانند، اینها مردمان منسوب به علم اسلامی وشریعت هستند،ولی از روح ،خواسته ها، وخصوصیات اسلام آگاه نیستند. نه نظام اسلام رامیدانند،ونه در رابطه با نظریه حاکمیت دراسلام چیزی را می فهمند. و همین علت است که فرق میان اسلام ودیموکراسی رانمی فهمند.

۳ – حالت سوم شاید این باشد که این مردم خوب میدانند که اسلام ودیموکراسی دونظام کاملاً جدااز همدیگر اند، اما اینکه اقامه نظام اسلامی از آنهاجهاد، قربانیها، وتحمل رنجها رامطالبه می نماید، وآنها آماده اینکار نیستند،بلکه تحقق مقاصد ومصالح دنیوی آنها از طریق دیموکراسی بر ایشان آسان جلوه می کند.پس از جهت منافقت نام اسلام رابردیموکراسی می نهند،تا از یکطرف مردم را فریب دهند که گویا اینهااحزاب اسلامی هستند،وبرای اسلام کار می کنند،واز جانب دیگر بابرگزیدن راه طاغوت با احزاب (سیکولر)به آسانی وبدون تحمل قربانیها درحاکمیت شریک شوند، واز امتیازات حکومتی مانند سیکولرها لذت ببرند،وعیش کنند.

ولی شریعت،عقل،تاریخ،و تجربه همه به اثبات رسانیده اند که نظام اسلامی به هیچگونه از طریق انتخابات ودیموکراسی اقامه نمیشود. و برای اثبات این ادعا دلائلی دهگانه ذیل راخدمت خواننده گان یادآوری می نمائیم:

**دلائل ده گانه بر ناممکن بودن اقامۀ نظام اسلامی از طریق نظام انتخاباتی**

دلیل اول: مفکورۀ اساسی دیموکراسی اینست که حکومت، نظام، و قوانین از طرف مردم، توسط مردم، وبرای مردم ساخته میشوند. وهر جهتی که فعالیت دیموکراتیک می نماید اولتر از همه باید بپذیرد که نظام وقوانین به رغبت مردم، ومطابق خواسته های مردم ایجادمیگردند. وحتی اگر قانون اسلامی هم نافذ گردد، به این اساس نافذ نمی گردد که آن یک مکلفیت الهی است،بلکه به این حیثیت نافذ میگردد که خواستۀ مردم است.

مردم در دیموکراسی اختیار دارند که اسلام را می خواهند، ویا کدام دینی دیگری را، ویا هم هیچ دینی را نمی خواهند، وملحد میگردند.

ولی اسلام هرگزبه مسلمانان اجازه نمیدهد که از اسلام مرتد گردند.

حاصل تفصیل فوق الذکر اینست که هرحزب وگروه اسلامی که شامل انتخابات میگردد اولتر از همه باید این راپبذیرد که :طوریکه آنها میخواهندمردم رابه طرف اسلام دعوت کنند، همچنین گروه های غیر اسلامی نیز بایداین حق راداشته باشند که مسلمانان رابه طرف کفر دعوت نمایند، وهیچ کسی بر آنها حق اعتراض نداشته باشد.

دلیل دوم : در نظام پارلمانی حق وضع قوانین وتصویب آنراتنها اکثریت در اختیار دارد، وتازمانیکه گروه پلولمانی اسلامی اکثریت را در پارلمان تشکیل ندهد حق قانون سازی راندارد، واصول دیموکراتیک پارلمانی اقلیت رامکلف میگرداند تا در قانونسازی حق اکثریت راپبذیرد، اگر چه قوانین ایجادشده توسط اکثریت مخالف اسلام نیز باشند، که این کار در یک کشور اسلامی بمعنی پذیرفتن حق قانون سازی بر ضد اسلام است، که اسلام به این کار هرگزاجازه نمیدهد. مسلمانان بایدبه هیچ کسی اجازه ندهند که در نظام وکشور شان قوانین غیر اسلامی ایجاد گردند.

دلیل سوم : گروهیکه در انتخابات برنده شده است حق دارد تا برای چهار ویا پنج سال حکومت نماید. ودیگران بایددرین مدت حکومت آنهاراپبذیرند. اگر بالفرض کدام گروه اسلامی اکثریت آراء رابه دست هم آورد، وحکومت را هم تشکیل دهد، واسلام رانافذ هم نماید، درین حالت نیز مدت نفاذ اسلام برای چهار ویا پنج سال خواهدبود. وبعد از تکمیل مدتش آن گروه مکلف است تاازحکومت دست بکشد، که این کار دراسلام خلاف اجماع امت است.

چون از نظر اسلام حاکم تا زمانی به حکومتش ادامه میدهد که زنده باشد، واهلیت شرعی حاکمیت راداشته باشد. پس اگر اهلیت دارد چراازمنصب حاکمیت دور گرد د؟ واگر اهلیت ندارد، پس چرا برایش برای بار دوم چانس حکومت کردن داده میشود؟

مخالفت دومش با اسلام اینست که اسلامی راکه این گروه نافذ کرده است بایدبرای همیشه نافذ باشد. ولیکن بنابراصول دیموکراسی این نظام بعد از گذشت چهار ویاپنج سال بایدخود بخود منحل گردد، ویکبار دیگر به مردم این حق داده شود که حاکمیت اسلام رامیخواهند، ویاغیر اسلام را؟ که دیموکراسی بااین کار به احزاب سیکولر فرصت میدهد که به حاکمیت برسند.

دلیل چهارم : نظام حاکمیت در اسلام ونظام حاکمیت در دیمو کراسی دو نظام جدااز همدیگر اند، ومشارکت گروه های اسلامی در سیستم دیموکراسی به معنای تأئید وتوثیق دیموکراسی است. ووقتیکه عوام مردم علمای دین راببینند که در دیموکراسی مشارکت میکنند، و در انتخابات خود را کاندید می نمایند، آنها نیز فکر میکنند که شایددیموکراسی نیز یک نظام برحق باشد. زیرااگر بر حق نمی بود(علمای دین) در آن سهیم نمی شدند.

درین صورت اگر علماء هرچندبرای توجیه مشارکت خود در نظام دیموکراسی دلایل وتأویلهای مجبوریت ویامصلحت دعوت وغیره راتقدیم نمایند، عامه مردم آنرانمی فهمند. زیرادرجریان فعالیت پارلمانی علمای منسوب به دین وسیکولر ها همه طبق یکنوع اصول حرکت مینمایند، ومیان عملکرد هردو گروه کدام فرق چشمگیری مشاهده نمیشود.

دلیل پنجم : هر نظام از خود یک ایدیولوژی وفکری دارد که راه رسیدن به آن نظام نیز باید از وسائل ومفکورهٔ خودش انتخاب شود. ایدیولوژی وفکر دیموکراسی (سیکولریزم) است. وعملیه انتخابات نیز بر اساس فکر سیکولریزم استوار میباشد. چون شرط اساسی برای انتخابات مساوات سیاسی بین افراداست، واین مساوات زمانی متحقق می‌گردد که هر فرد وجهت مشترک در دیموکراسی دین خود رابه مقصد تطبیق دیموکراسی کنار بگذارد. زیرا دین به انسانها درس برتری (تفاضل) یکی بر دیگری میدهد. بطور مثال : دین میگوید : مسلمان برکافر برتراست. امادیموکراسی حکم میکند که هردو(مسلمان) و(کافر) باید مساوی باشند. ومساوات تنها زمانی متحقق می گردد که قضیه (کفر) و (اسلام) از میان برداشته شود.

پس بر همین اساس انتخابات خاصه د یموکراسی است، وازطریق آن تنها دیموکراسی تطبیق شده میتواند، نه اسلام. وچون دین اسلام یک دین جدااز دیموکراسی است، بایدراه ووسیله تنفیذ حاکمیت درآن نیز از دیموکراسی جداباشد.

و طوریکه دیموکراسی با کمونیزم، نصرانیت، یهودیت، وادیان دیگری پیوندنمی پذیرد، اسلام نیز باادیان وایدیولوژیهای دیگری پیوندکاری وتلفیق رانمی پذیرد، ونه از راه های دیگر ی تطبیق میگردد.

نظام اسلامی تنها از همان راهی وبه همان شیوهٔ قائم میگردد که در زمانه رسول الله ﷺ بر آن قائم شده بود. پس تلاش برای تنفیذ اسلام از راه های (باطل) کاریست ناروا وخلاف عقل وفطرت .

دلیل ششم : دیموکراسی زادهٔ نظام سرمایه داری (کپیتالیزم) ومظهری سیاسی آنست، وبه هر مقداریکه درجهان اسلام دیموکراسی حاکم می گردد به همان اندازه نظام استوار بر (سود) و (احتکار) سرمایداری که نظام اقتصادی مخالف اسلام است نیز محکمتر و راسختر می گردد .

اگر بالفرض کدام گووه اسلامی از طریق دیموکراسی به قدرت هم برسد، آن گروه نیز آهسته آهسته به مرور زمان جزئی ازنظام سرمایداری میگردد، واز نظام اقتصادی اسلام خارج میگردد.

دلیل هفتم : سیاست انتخاباتی چون لجن زاری است که هر گاه حزبی از احزاب اسلامی در آن بیفتد خروج اش از آن کار نهایت دشوار ی میباشد. همه گروه های اسلامی که یکبار درسیستم دیموکراسی داخل شده اند ازمبارزهٔ انقلابی وجهادی برای غلبه اسلام دست کشیده اند. زیرا شرط سیاست دیموکراتیک اینست که مبارز ۀ مسلحانه ترک شود.

ترک مبارزهٔ مسلحانه ، وبستن امیدهای غلب ۀ اسلام بادیموکراسی وانتخابات، وسپس این کار را مبارزه اسلامی خواندن درحقیقت یک سدخطر ناکیست در راه تنفیذ اسلام . زیرا اینکار سبب بی باوری مسلمانان بر جهادونتایج مرتبه برآن مي گرد د.

تجارب ناکام اخوان در مصر ، و تجارب گروه های جهادی سابق درافغانستان، و گروه های اسلامی در پاکستان واضحترین مثالها درین عرصه اند. اینهانه تنها بعدازسپری مدت مدیدی نظام اسلامی را نافذ نتوانستند، بلکه دشمنان اسلام بامکر ومهارت فراوان آنهارابه صف خودکشانیده و علیه مجاهدین قرار دادند. و کار به جای رسید که این احزاب نام نهاد اسلامی دیموکرات همه داشته ها ووسائل تبلیغاتی خودرا همراه با صلیبیها برضدجهاد ومجاهدین هماهنگ نموده اند، وعملاً در زیر بیرغ صلیبیها ودیموکراتها علیه مجاهدین میجنگند، ووظیفه جاسوسی برای دشمن را در داخل مجتمع افغانی انجام میدهند.

دلیل هشتم : دیموکراسی نظامیست که در آن احزاب اسلامی قادر به کسب اکثریت نمی شوند. چنانچه در جریان چندین ده ۀ گذشته درعالم اسلام دیده شد. وعلتش اینست که بنیاد فکری وسیاسی دیموکراسی به گونه ریخته شده که درآنجا باید سرمایه داران ، فیودالها، خانان، ملکان، صنعتکاران، تاجران بزرگ، بیروکراتهای پیشین، اشخاص وابسته به فسادمالی به قدرت برسند. چون درنظام دیموکراسی بزرگترین ومهمترین وسلیه رسیدن به قدرت مصرف گزاف مال است . و در کنار آن دادن رشوت، بدست آوردن آراء مردم دربدل پول ، فریب دادن مردم ، دادن وعده های دروغین وبکار انداختن تبلیغات وسعیی به نفع خود، وبرضدمخالفین خود از ضرورتهای انتخاباتی شمرده میشوند، که بدون آنها پیروزشدن در انتخابات میسر نمیباشد . وانتخاب چنین راهی برای پیروز شدن در انتخابات نه اسلامی است ، ونه در توان گروه های اسلامی میباشد.

دلیل نهم : اگر گروهی ازگروهای اسلامی باوجوداین همه موانع ومشکلات موفق به کسب اکثریت در انتخابات شود، وبه قدرت هم برسد، درآنصورت این گروه نیز پابند همان قانون اساسی خواهدبود که بر اساس دیموکراسی وضع شده است .

قوانین اساسی امروز به احزاب برنده درانتخابات اجازه نمیدهد که شریعت راکاملاً نافذ نمایند، وقوتهای سیکولر (بی دین) نیزنمیگذارند که گروه برنده درانتخابات تغییری رادرقانون اساسی واردکنند. درین حالت اگر گروه برنده قانون اساسی را کنار گذاشته وشریعت رابه طور مکمل نافذ نماید، به این کار جواز باقیماندن آن گروه در قدرت نیز از بین میرود. چون گروه برنده خودطبق اصول همین قانون اساسی ازطریق انتخابات به قدرت رسیده میباشد، وزمانیکه قانون از بین میرود، جواز حاکمیت گروه برنده نیز به همراه قانون اساسی یکجا از بین میرود.

دلیل دهم : گروه اسلامی بقدرت رسیده از طریق انتخابات اگر بالفرض اسلام را نافذ هم نماید، به طور ناقص ونیم بندخواهدبود. چون یکی ازوجائب عمده ومهم حکومت اسلامی اجرای وظیف ۀ (امر بالمعروف و نهی عن المنکر) است، ووجودگروه های غیر اسلامی در یک کشور اسلامی از بزرگترین منکرات محسوب میشوند. و مخصوصاً زمانیکه آنها اجازه فعالیت آزاد را نیز داشته باشند. حکومت اسلامی باید همه احزاب سیکولر ومرتدرا از فعالیت منع کند، وافرادآنهارا به دین اسلام دعوت نماید، ودر صورت امتناع ازبازگشت به اسلام بایدآنها را از میان بردارد.

# مولانا بجلي ګهر ،

## تروروستی سلګی له اسلام او ملي اقدارو دفاع وکړه !

لطیف عزم

دپاکستان دجمعیت علمای اسلام دخیبرپښتونخوا دمشر شیخ القران والحدیث مولانا امان الله دخلورو کالو مخکې خبره وه هغه مهال چې مونږ ترې دحدیثو لو په دوره لوستله هغه ویل ، له مولانا بجلی ګهرخخه په سرحد صوبې کې دعلم او پوهې په لحاظ بې شمیره علمای کرام ، محدثین او فقها موجود او تیرشوي خو الله تعالی چې په مولانا بجلي ګهر کې کومه حنجره او دتقریر قوت او مهارت اینبی دابیا په بل عالم او مقرر کې تراوسه ندی لیدل شوی ، شیخ صاحب ویل نشنلیانو یو مهال په جلسو او جلوسونو کې ډیرې جذباتي ویناوي او تقریرونه کول ، په علماوو او دیني طبقي پسي به یې سختې سپکې سپورې ویلې ، خو دا یواځې مولانا بجلي ګهرووچې هغوی ته به یې کماحقه ځواب وایه دهغوی کمی او نواقص به یې په منطقي انداز په ګوته کولې ،دشیخ صاحب په خبره دادمولنا بجلي ګهر دنطق او خطابت زوراو هنرووچې دجمعیت جلسي به تل کامیابه او زیات شمیر خلک به تنها دمولانا تقریر لپاره راجمع کیدل !

داخووو دشیخ صاحب امان الله برداشت او دمرحوم مولانا بجلی ګهرپه اړه خاص نقطه نظر ، خو کوم شی چې اتفاقي او دهرافغان او متدین پښتون دزړه اواز او مینه ده هغه داده چې اروابناد مولانا صاحب یولوی جامعیت اودخلکو په زوړونومنلی راج او پادشاهي درلوده ، مولاناصاحب دخپل الله ورکړي فصاحت او بلیغ کلام په واسطه له اسلام، پښتني غیرت او سیمه ییزو رغندو اقدارخخه کلکه دفاع اوننګه کوله او یوه لویشت هم له خپلې برحقې او جرارې داعې ځخه نه په شاکیده ، هغه دژوند ترورستی سلګی پورې په خپل هیوادکې دښځې حکمرانی ته غاړه تیټه نکړه اونه هم دبیدینیو ، فحشاوو او دودیزو خرافاتو په مقابل کې خاموشه کښېناست ، هغه ته که دوخت واکمنو دقدرت ، روپیو اود مادي عیش عشرت بې حسابه لالچونه وړاندې او پیشکش یې ورته وکړ،خو داسلامي غرور دغې سترې او تاریخي هستی داهرڅه په لته وهل ،جیلونه ،زولنې تهدیدونه اوه فقربه یې مانه خو داسلام او ملي اقدارو په وړاندې به یې هیڅکله سازش نه قبلاوه

مولانا بجلی ګهرڅوک وو

دمولاناصاحب اصلي نوم محمدامیر دکوهاټ دادم خیلو درې داخوړوال سیمې او سیدونکی وواو ۸۵کاله پخوا یې په نوموړې سیمه کې نړی ته سترګې پرانیستې وي

دبجلي ګهرپه نوم هغه مهال مشهوراو معروف شوچې هغه شاوخوا ۲۵کال پخواد پیښور صدرسیمې دبجلي ګهرپه نوم په یوه کلي کې استوګن شواوهملته دبجلي ګهر په نوم دیوه جامع جومات امام اوخطیب وګرځید

اروابناد دپاکستان او افغانستان له مشهوردیني علمای کرامو او استادانو څخه له زدکړو ترلاسه کولووروسته په ۱۹۵۴میلادي کال کې دسرحد له اسلامي دارالعلوم څخه فارغ او ترڅه مودې پورې هملته داستاداو مدرس په حیث هم پاتې شوی ، دهغه مشهور

استادان ( مولانا محمد ایوب جان بنوری ، مفتي عبد الطیف او مولانا کابل بابا رح ) یادیږي

ارواښاد دې ترڅنګ چې دمفتي محمود خاص پیروکار او نیږدې ملګری وو د پېښور په ښار کې د ( انجمن قران و سنت ) دیوه دیني او دعوتي ادارې مشر او سرپرست هم وو ، هم دغه علت وو چې هغه به د پېښور ښار د ( نمک منډی ، قصه خوانی او کوهاټی ) کې په دیني او مذهبي ورځو کې لویې جلسې کولې او زرګونه خلک به ورته راجمع کیدل

ویل کیږي چې مولانا بجلي ګهر هغه وخت چې دجمعیت علمای اسلام ډلې د پاکستان د پخوانی صدراعظمي ( بینظیر بهټو ) سره په کال ۱۹۹۳ کې اتحاد وکړ کرار کرا یې له دغه ګونده تودې اړیکي وشلولې او له ګوندي سیاست نه یې لاس واخیست

دیاد ولو وړه چې دمرحوم مولانا بجلي ګهر له طنز او موثر وګټورو مزاحیه وو او له پندډکو وینا څخه په سوونه کیسټې شاته پاتې دي چې د پاکستان په ولس سربیره په افغانستان کې هم په لکونو مینه وال او محببین لري

مرحوم مولانا صاحب له تیر رمضان المبارک څخه شدیدې ناروغی راګیر او له تقریر او لیري ګشت اوګزار څخه یې وغورځاوه

ارواښاد دوشني په ورځ چې د ۲۰۱۳ کال له ړومبی نیټې سره یې سمون لاره وفات او جنازه یې د پېښور صدر په قیوم سټډیم کې دزرګونو خلکو په ګډون ترسره او بیا خپل پلرنی کلي ( ادم خیلو ) دري ته یوووړل شو او جسد مبارک یې هلته دفن شو

دالله تعالی دربارته لپې ددعا په نیت نیسو چې د اسلام ددغه زمریالي او لوی مجاهد اسلامي ،اخلاقي او جهادي خدمتونه او ستړیاوي په خپل دربار کې قبولي وګرځوي او متعال څښتن ج دې دهغه درجې لوړې او دغه لویه تشه دې په خپل فضل او مرحمت سره ډکه کړي ، امین

## حکیمانه خبرې !

۱ـ کله چې ازان واوري نو په هر کار کې چې لګیا یې هغه پریږده او د لمانځه ادا کولو ته تیاري ونیسه

۲ـ دقران کریم تلاوت کوه او غور ورته نیسه ،او د خپل ارزښناک ژوند یوه شیبه هم په بې هدفه او بې ګټې کار کې مه لګوه.

۳ـ زیار باسه چې عربي فصیحه ژبه زده کړې او خبرې اترې پرې وکړې.

۴ـ په هیڅ یوه کار کې زیاته شخړه او جګړه مه کوه.

۵ـ له زیاتې خندا څخه ډډه وکړه ځکه چې زیاته خندا د خدای (ج) د ذکر نه غفلت پیدا کوي.

۶ـ بې ځایه ټوکې مه کوه ځکه چې بې ځایه ټوکې د سړي وقار له منځه وړي.

۷ـ د خبرو اترو په وخت کې له اړتیا څخه زیا ت خپل اواز مه او اوچتوه.

۸ـ د غیبت کولو څخه ځان وساته او د نیکی له خبرو څخه پرته نورې خبرې کوم ګټه نه لري.

۹ـ کله چې د خپلو اسلامي ورونو سره مخامخ کیږې پس له اسلام علیمکم خپل ځان ورته معرفي کوئ ځکه چې د اسلامي دعوت بنسټ پرمعرفت اد محبت ولاړ دی.

۱۰ـ ډیر کارونه په کم وخت کوه د نن کار سبا ته مه پریږده.



ـــــــــــ ابو عابد

# دغور ولايت زياتره سيمې دمجاهدينو تر ولکه لاندې دي




غور ولايت دافغانستان په لويديځه حوزه کې واقع دی چې شمال ته يې جوزجان او فارياب ،ختيځ ته يې باميان او اروزګان ،جنوب ته يې هلمند او فراه او غرب ته يې هرات او بادغيس ولايتونه پراته دي ،داولايت ٣٦۴٧٩ کيلومتره مربع مساحت لري چې نفوس يې تر پنځولکو ډير بلل کيږي.

غور ولايت ترډيره حده يوه غرنی ولايت دی ، چې خورا سوړ ژمی لري او ډيرې لږ سيمې يې هوارې ددي ، ددې ولايت اوسيدونکي اکثريت په قوم تاجک دي ، دغه راز يو شمير ازبک ، هزاره او پښتانه هم په دې ولايت کې ميشت دي.

غور ولايت ټولې لس ولسوالۍ لري ، چې يوازې له يوې ولسوالۍ ( لعل و سرجنګل ) پرته يې په نورو ټولو کې مجاهدينو خورا قوي حضور لري او تقريبا په ٧٠ فيصده اراضي باندې يې مجاهدين واکمن دي ، لعل وسرجنګل ولسوالي چې له باميان ولايت سره په پوله پرته ده اوسيدونکي يې هزاره دي او له شيعه مسلک سره تړاو لري ، په دې سيمه کې دحزب وحدت ډله په واک کې ده له همدې امله خو دا سيمه داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال هم دغور يوازينۍ نارامه سيمه وو او داسلامي امارت په خلاف په کې تحرکات کيدل ، له دې ولسوالۍ پرته دغور په نورو ټولو ولسواليو کې مجاهدين په اکثرو سيمو واک لري.

شينکوټ ، تيوره ، دولينه او شهرک دغور ولايت هغه ولسوالۍ دي چې يوازې يې دولسواليو په مراکزو کې حکومتي اداري شتون لري نورې سيمې په مکمل ډول له دښمن څخه پاکې شوي دي ، په دې سربيره په چارسده او دولتيار ولسواليو کې هم قاطع اکثريت سيمې دمجاهدينو ترکنترول لاندې دي ، دهرات ولايت سره په پوله پرتې ساغر او تولک ولسوالۍ هغه سيمې دي چې مجاهدين په کې قوي شتون لري ، خو په سيمو يې مکمله قبضه نشته.

مولوي عطاء الله عمري چې څه موده وړاندې غور ولايت ته دجهادي وضعيت دبررسي په منظور ديوه هيئت په تشکيل کې تللی وو ، وايي دغور په ولايت کې مجاهدينو ته اټکل لوړ قوي او عمومي نفوذ درلود ، اکثره سيمې يې ازادې وي ، په ډيرو ولسواليو کې مجاهدينو ددښمن په مراکزو باندې دمحاصرې کړۍ ( خطونه ) راګرځولي وو ، او دښمن نه شوای کولای له هماغو سيمو پرته نورو ته قوه وباسي يا عمليات وکړي.

په غور کې يوازې له هرات څخه ترمرکز چغچران پورې غځيدلې لار ددښمن په مخ خلاصه وه ، او دښمن دخپلو اکمالاتو لپاره ترې استفاده کولای شوای ،

دولسوالیو لارې ددښمن په مخ بندې وې او اکثره سیمو ته دشمن دهوا له لارې اکمالات رسول.

دمولوي عطاء الله په وینا په غور کې بله دپام وړ خبره له جهاد سره پراخ ولسي ملاتړ وو ، په ولسوالیو ، کلیو او بانډو کې هیڅ داسې کس نه وو چې هغه دې ددښمن پلوی وي ، خلک ټول له مجاهدینو سره همکاره وو ، هیڅ حکومت ته مراجعه نه کوله ، بلکې خلکو اسلامي امارت د رسمي واکمن نظام په توګه په رسمیت پیژانده ، او خپل ټول عرائض یې د اسلامي امارت محاکمو ته راجع کول.



په غور ولایت کې خارجي یرغلګر د ناروې هیواد ځواکونه دي ، چې یوازې په مرکز چغچران کې شتون لري ، نور په دې ولایت کې هیڅ باندیني یرغلګر شتون نلري ، دښمن یوازې د مرکز چغچران ښار او دهغه په شاوخوا سیمو کې تریوه حده حضور او ولکه لري ، په همدې سیمو کې دښمن د دولتي ادارو ددفاع لپاره یو شمیر اربکیان هم استخدام کړي دي ، خو دولایت په نورو برخو کې داربکیتوب کوم څرک نشته.

په غور ولایت کې سره له دې چې دښمن ته ګڼ تلفات اوړي ، خو دمجاهدینو تلفات خورا کم دي ، ددې ولایت دمجاهدینو په وینا تراوسه په دې ولایت کې کومه داسې پیښه نه ده رامنځته شوې چې مجاهدین په ډلییز شکل شهیدان شوي وي.

دغور ولایت مجاهدین وایي چې هیوادنۍ او نړیواله بې انصافه میډیا دغور ولایت د حالات بیانولو په باره کې پوره بې انصافي کوي ، په داسې حال کې چې ددې ولایت زیاتره سیمې دمجاهدینو په لاس فتحه شوې او دښمن په کې یوازې سمبولیک شتون لري ، بیا هم میډیا داسې انځور ورکوي لکه په دې ولایت کې چې مجاهدین هیڅ شتون نلري ، دوی وایي په غور کې اتصالاتي ستونزې ددې سبب ګرځیدلې چې دورځنیو جهادي عملیاتو ډیر راپورونه له نشر څخه پاته شي ، خو په عموم کې ددې ولایت داوضاع په اړه ویل کیدای شي چې داسیمه دجهاد یوه له مهمو سیمو څخه ده ، چې خلک یې ټول دمجاهدینو ترڅنګ ولاړ دي ، او دښمن داولس په منځ کې هیڅ اعتبار او ځای نلري.

غور ولایت چې پخوا په کې دبیلابیلو اقوامو ترمنځ تربګنۍ او دښمنۍ موجودې وې دجهاد او مجاهدینو په برکت هغه پخوانۍ دښمنۍ او قومي مشکلات هم ټول له منځه تللي او اولس یې د پخوا هرکله په نسبت دورورولۍ په فضا کې ګډ ژوند کوي.

که دغور ولایت دورځنیو جهادي عملیاتو تفصیل ته ورځو نو کیدای شي دامطلب مو په مراتبو نور هم اوږد شي ، دغور دجهادي عملیاتو مفصل راپورونه دالاماره ویب پاڼې په خبري برخه دغه راز داسلامي امارت دنشراتي اورګان ( مورچل مجلې ) په خبري برخه کې لوستلی شئ.



# بروز نمایندگان امارت اسلامی در کنفرانس پاریس

سعید بدخشاني

به یاری ونصرت خدای یکتا امارت اسلامی درهمه وقت به ویژه در این اواخرموفقیت ها وپیامدهای هر چه بیشتروخوبتری را درسطح جهان به ویژه درسطح کشور احراز نموده است ، هم به لحاظ قوّت نظامی وهم به لحاظ سیاست خارجی وداخلی.

ازجمله اشتراک نمایندگان حقیقی امارت اسلامی در کنفرانس پوژهشی وتحقیقاتی پیرامون اوضاع افغانستان در شهر(شانتی)پاریس (پایتخت)کشور فرانسه که به میزبانی ودعوت یک نهاد پوژهشی وعلمی غیر دولتی دائیر گردیده بود، روی تحقیق وبرسی حالات واوضاع کشور از مقامات امارت اسلامی هم دعوت بعمل آمد تا در این کنفرانس شرکت نموده موقف وخط مشی خود را روی حل مشکلات افغانستان ابراز نماید، پس امارت اسلامی (بخاطر حل مشکل ملت وکشور وار ائه نظریات سالم وموقف پرمحتوای خود در پرتوشریعت) برای اشتراک کنندگان ، نمایندهای احزاب سیاسی وجهانیان دعوت این مؤسسه میزبان را پزیرفت.

باید گفت :که عرض اندام دیپلوماتان امارت اسلامی دراین کنفرانس وار ائه اهداف وموقف پرمحتوا وهمه جانبه امارت توجه اشتراک کنندگان داخلی وخارجی دراین مجلس را جلب کرد وبرهمگان نمایان شد که امارت اسلامی ن ه تنها درمیادین نبرد وکاروزارعلیه اشغالگران موفق وثابت قدم بوده بلکه در میدان سیاست نیز میتواند که جهانیان را از راه دیپلوم اسی قانع سازد، وبرجهانیان آشکارنمایند که ما در منطقه ، جهان به ویژه درافغانستان أمن وثبات می خواهیم آنهم در پرتو دین مبین اسلام ، زیرا یگانه اسلام است که أمن وارامش را برای همه انسانان اعم از مؤمن وغیرمؤمن تضمین میکند اسلام است که به آبرو وحیثیت هم انسانان ارج می گذارد.

اندیشمندان ومفکرین محترم خوب بدان تد! اگرأمن درمنطقه ، جهان وخصوصاً در افغانستان ویاهم نابودی مواد مخدر وفساد اداری که امروز همه مردم ازآن در فغان آمده به زور تانگ ، توپ ، جنگ افزارها ، اسلحه کشتارجمعی ، طیاره های بی 52 وطیاره های بدون سرنشین می بود هرآینه غربیان مغرور با متحدین متجاوز شان میتوانستند که دریک کشور بسیارکوچک وفقیر تأمین وتطبیق گر دانند اما متاسفانه این صلبیان اشغالگر به همه توان وتکنالوژی مدُرن وپیشرفته دست داشته نتوانستند که دریک شهرکوچک هم امنیت را تأمین کنند ، پس تعجب اینجاست که

مزدوران وکاسه لسان آنان بعد ازخروج باداران چطور وبه کدام جرأت وتوان مندی امنیت را تأمین میکنند این خیال است ومحال است وجنون.

پس باید به واقعیت ها اعتراف کنیم یگانه سرسپردگان ومجاهدین امارت اسلامی بود که با وجود همه مشکلات ودشواریها وباوجود همه تحریمات اقتصادی وسیاسی از سوی جهانیان وحامیین حقوق بشردر 95فیصد خاک افغانستان امنیت را تأمین کردند این یک حقیقت انکار ناپزیراست وجهانیان هم خود به این حقیقت معترف اند وفعلاًهم لله الحمد در اکثرنقاط کشور مشکل مردم توسط قضات ومحاکم مجاهدین امارت اسلامی حل وفصل میگردد.

پس باید بگویم: یگانه تضمین کننده ثبات وآرامش در منطقه مخصوصاً در افغانستان تنفیذ احکامات وفرامین "شریعت "وتطبیق عدالت اجتماعی هست.

اسلام عزیز است که ظلم، تعدی وتجاوز برحریم دیگران را ممنوع وتحریم می کند، اسلام است که پیروانش را حریت وآزادی می بخشد! اسلام است که بما درس میدهد که از ملت، ناموس، آبرو واراضی خویش دفاع نماید ونگذارید که غداران تاریخ ودشمنان حریت وآزادی بر شما تجاوزکند ودر صورت اشغال ویورش بیگانه گان بر سرزمین شما بالای شما فرض ولازم است که کشور واراضی خود را از لوث پلید اشغالگران پاک بسازید اگرچه به دادن سر، مال واولاد هم باشد، لذا بالای ملت ومردم افغانستان لازم است که در برابر متجاوزین بی تفاوتی وسکوت را اختیار نکنند بلکه دست به قیام مسلحانه بزنند واگرعملاً وارد سنگرهای جهاد شده نمیتوانند جهاد بلمال بکنند ومجاهدین را جای بدهند ولا اقل اهداف مقدس جهاد ومجاهدین را غلط توجیه نکنند.

پس درخطاب به رهبران ومفتیان دروغین کشورباید گفت:

ای مدعیان دروغین اسلام! چراباصلبیان ومتجاوزین دست با هم داده اید؟

چرا درزیر یوغ استعمار زیست می کنید؟

چرا؟چشمانتان را بازکرده جرائم، ظلم ووحشت باداران تان برملت مظلوم را نمی بینید. چرا؟صدا وآواز اطفال معصوم، زنان وپیر مردان که زیربمبارد مان وتوپ خانه های اشغالگران تیکه تیکه میشوند به گوش تان نمی رسد.

پس جای افسوس است که با وصف این همه جنایات وجفا به اسلام واهل اسلام علی الخصوص بر ملت مظلوم افغانستان باز هم خودرا مسلمان و وارثین ملت واراضی افغانستان میدانید، وبا ظهور نمایندگان حقیقی امارت اسلامی وملت متدین افغانستان در همچو کنفرانس های پاریس وشیکاگو سراسیمه و وارخطا می شوید که مبادا بادران مارا ترک کنند وباری دیگر وارثین اصیل ملت وسرزمین افغانستان به پایه ای اقدار برسند، وما ازکرسی ومنصب وغصب اموال واملاک مردم بمانیم.

در این جای شک وتردید نسیت وقتیکه کشور عزیز صاحبان اصلی خود را پیداکند ودین مقدس اسلام واحکامات قرآن در آن نافذ شود دیگرهیچ گاه شما غداران تاریخ برملت ظلم وستم نخواهید توانیست. انشاء الله عنقریب است که ملت مظلوم ومستمند افغانستان از غصب وجبر شما وباداران متجاوزتان در أمن شوند.

# دکرزي دعالمانو شورا که د شورواو شورا

حافظ محمد خراساني

دافغانستان د موجوده حکومت د صلح شوري، چې له تیرو څنو کلونو څخه په هیواد کې د صلح د را منځته کولو مسئولیت په غاړه لري، خو تر اوسه یې په ډراماییي توګه حکومت ته د یو څو کسانو له تسلیم کولو څخه پرته هیڅ قسم خدمت نه دی کړی، یواځې د ځان لپاره یې توري پیسې سپیني کړي، له دې لارې یې غټې غټې تنخواوې او مصارف تر لاسه کړي دي، نه یې هیواد ته صلح راوسته او نه یې له مخالفینو سره د صلح کوم د یادونې وړ پرمختګ وکړ.

تاسو به له مطبوعاتو څخه اوریدلي وي، چې د کرزي د ادارې همدې د صلحې شورا د یوې نوې شورا د راغوښتلو وړاندیز کړی دی، یعني یوې شورا د بلې شورا وړاندیز کړی، په دې شورا کې به ډیر عالمان برخه اخلي او کیدای شي دا دیني عالمان د نړۍ له بیلا بیلو هیوادونو څخه رادعوت شي، چې د هغې په جمله کې به هند کې د دارالعلوم دیوبند، په مصر کې د ازهر د جامعې، سعودي، قطر، امارات او پاکستاني عالمان هم شامل وي.

دوی غواړي د دې شورا له پریکړو او فتواګانو څخه ګټه پورته کړي، خپل حکومت نړیوالو ته اسلامي حکومت ثابت کړي، د مذاکراتو لړۍ په خپله خوښه او ګټه روانه کړي، د همدې شورا په نتیجه کې خارجیانو ته د وتلو لپاره یوه مناسبه له عزته ډکه لاره پیدا کړي، د ځیني چارو په ځانګړې توګه د فدایي بریدونو د حرمت شرعي فتوا تر لاسه کړي.

دا شورا د کابل اداره په خپل مټ او په خپل وړاندیز نه راغواړي، بلکې د دې شاته د امریکایانو او د ایساف د هیوادونو لاسونه په فعالیت بوخت دي او مالي سرچینه یې هغوی تمویلوي.

په کار ده، چې په افغانستان باندې د حملې په مهال هم همداسې د عالمانو د شورا د راغوښتلو وړاندیز شوی وای، تر څو یې هغه مهال له جنګ څخه پرته د قضیې صحیح او سالم حل را ویستلی وای، ولې په پیل کې صلیبي ځواکونه ډېر مست وو، غرور اخستي وو، نه یې د چا په خبره غوږونه ګرول، نه یې د نړۍ مسلمانو عالمانو ته څه اهمیت ورکول، یواځې په مړ کړه او ونیسه پوهیدو، نو ځکه یې د وحشت بازار ګرم کړی وو او د دې وحشت لومړی ښکار عالم، طالب او متدین مسلمان وو، په شمال کې په رزګونو اسیر طالبان دوی شهیدان کړو، په ډرون حملو، بمبارۍ او چاپو کې په زرګونو افغانان هم دوی شهیدان او بندیان کړو، په ودونو او جنازو باندې بمبارۍ تر سره شوې، زنانه، واړه ماشومان تر خاورو لاندې شوو، تر دې چې هغه کسان هم ونه بښل شول چې له صلیبیانو سره همکاران وو او مرسته یې ورسره کوله.

په افغانستان کې د صلیبیانو په اوسنۍ اداره کې عیسایي، یهودي، هندو، دهري، ډم، سګشوی، د غربي هوټلونو مزدور، غل، ټوپکي، رشوت خور، بد معاش، لوطي، زاني، قاتل، لنډه دا چې د هر فاسق فاجر او بد کاره ځای شته او وو، خو د ملا، طالب او پوخ مسلمان ځای نه شته او نه وو، چې ځیني مهاجر شوو، یا د غرونو سرونو ته وختو، ډیر بندیان او یا هم په ډېر ظلم په شهادت ورسول شوو.

د دوی د وحشت او هیبت په مقابل کې افغانانو په سخت مقاومت او غبرګون لاس پورې کړو، طالبانو د صلیبي یرغل د ځپلو لپاره له هري حربې څخه کار واخست، تر څو هغوی په پای کې انفرادي او د ډله ایزو استشهادي عملیاتو بهیر پیل کړو، په دښمن یې سخت تندریز ډله ایز فدایي بریدونه وکړو، هغوی ترینه هیڅیرته خوندي پاتې نشوو، صلیبیانو د فدایي عملیاتو د بهیر د مخنیوي لپاره له مختلفو لارو څخه کار واخست، خو دوی ونه توانیدل چې مخه یې ونیسي، د خپل نجات او ژغورنې لپاره ورته د مسلمانانو وروستۍ پریکړه د دیني عالمانو فتوا ور په یاد شوه، نو ځکه دوولس کاله وروسته ورته مسلمانان دیني عالمان ور په یاد شوو، د

همدې کار د عملي کولو لپاره يې لومړی په انفرادي توګه له ځينو عالمانو څخه کار واخست لکه استاد سياف او ځيني برېلوي عالمان، خو کله چې د سعودي عرب نامتو شيخ عبدالعزيز د عرفات په مبارکه ورځ د فدايي حملو د حرمت فتوا ورکړه، نو دانګريزانو په شيطاني ذهن کې دا خبره را وټرخېده، چې بايد ونه د خپل لرګي په ذريعه د تبر په مرسته ووهل شي، يعني فدايي بريدونه د نړۍ د مسلمانانو عالمانو په متفقه شرعي فتوا سره حرام اعلان کړل شي او د حرمت فتوا يې ورکړل شي.

نو، ځکه دوی دا شورا را وغوښته، دا شورا که په هر نوم او هري موخي لپاره را غوښتل کيږي، خو له نورو ټولو موخو څخه علاوه ستر هدف به د فدايي بريدونو د حرمت فتوا د اسلامي نړۍ له نامتو عالمانو څخه تر لاسه کول دي.

دا شورا په ډېر حساس او بېړني پړاو کې را غوښتل کيږي، امريکايان د خپل تاريخ له بدترين او ناوړه حالت سره مخ دي، له يو لوري څخه يې د جګړې د اوږدولو توان له لاسه ورکړی او له بلي لوري پرې د طالبانو بريدونه زيات شوي، دوی منلې چې په ۲۰۱۲ کال کې تقريبا له ديرشو زرو څخه زياتي حملې پرې تر سره شوي دي. دوی د ټولو حملو په نسبت له فدايي برېدونو څخه سخت په وېره کې دي، ځکه خو دوی د مذکوره شورا را وغوښته تر څو په ضمن کې د فدايي برېدونو د حرمت خبره را ولاړه کړي، چې د همدې فتوا د لاسته راوړنو په ترڅ کې په لومړي قدم کې په افغانستان کې د فدايانو له بريدونو څخه وژغورل شي او ورسره طالبان ضعيفه شي.

د فدايي برېدونو د حرمت ثابتولو لپاره غربيانو د قرآن او حديث په رڼا کې د عالمانو شرعي فتوا ته ځکه اهميت ورکړی، چې دوی ويره له لري که چيرته د طالبانو ډله ايز فدايي بريدونه همداسي روان وي، د فدايانو شمېر ورځ تر بلي مخ په زياتيدو وي، نو نزدې د چې دا اور له خراسان (افغانستان) څخه را بهر شي او غرب ته را ورسي، ځکه دوی پوهيږي چې د طالبانو فدايان د حملې او بريد په مهال له ډېر عادې ځيزونو څخه په ډېره چټکۍ سره کار اخلي، خو په پايله کې په غټه کچه تباهي رامنځته کوي، دوی په دې هم پوهيږي، چې که چيرته طالبان وغواړي خپل فدايان د غرب په لور ور مرش کړي، نو دا کار د نړۍ له ګڼو هيوادونو څخه په ډېر کم لګښت ترسره کيدای شي، ځکه نړيوال قاچاقبران يواځي په پنځلس زره ډالرو خلک د غرب هر هيواد ته چې وغواړي رسوي. غربيان په دې هم پوهيږي، چې که چيرته په کم شمير فدايان هم غرب ته ورسيدو، نو ټول غرب له سخت کړاو او غروب سره مخ کولای شي، حمله خو څه کوي، چې يواځي د فدايانو د رسيدو په آوازه به د نيم غربيانو خوب وتښتي، ممکن هوايي ميدانونه وتړل شي، د اورګاډي استيشنونه بند کړل شي، عامه د تجمع ځايونه او مارکيټونه ختم کړل شي، دوی په دې هم پوهيږي، چې په افغانستان کې په يو څپېړه يو مخ خوګيږي، خو په غرب کې بيا پرې سلګونه مخونه خوګيږي، ځکه افغانستان د ظاهر شاه له دوري څخه پرته په تيرو درې سليزو کې له سختو جګړو سره مخ دی، هغوی د غم زغملو او د تکليف برداشتولو توان لري، خو غرب بيا تيري درې سليزې په سخت عيش او عشرت کې تيري کړي، تر دې چې دوی له مرګ او درد سره سخت نا اشنا دي. نو دوی ځکه اسلامي عالمانو ته مخه کړه، دوی د موضوع په اهميت پوهيږي، ممکن دوی به د رسول الله (ص) وړاندوينه هم ليدلې وي، چې له خراسان څخه به د مهدي لښکري را وځي.

اوس په دې حساس او تاريخي پړاو کې د شورا د ګډون کوونکو عالمانو مسئوليت دی، چې په دې شورا کې ګډون کوي او کنه؟ که چيرته ګډون کوي، نو يواځي د صليبيانو د ژغورلو لپاره ګډون کوي او که په نړۍ کې د مظلومو مسلمانانو په ځانګړي توګه د افغانانو حالت هم ګوري، د هغوی مشکلات او ستونزي هم په نظر کې نيسي.

موږ او تاسو به حالاتو ته ګورو چې کوم قسم عالمان په شورا کې شرکت کوي، له دوی سره د اسلام زيات غم دی او که د صليبيانو غم ورسره زيات دی، دوی په افغانانو ترحم کوي او که د غربيانو موقف تائيد کوي او دا چې د دوی پريکړې به تر کوم حده پوري په طالبانو او د هغوی په عملياتو اغيز کوي؟

د يو ليکوال او څارونکې په څېر امريکايانو ته وړانديز کيږي، چې د روان کړکيچ مناسب حل را وباسي، چې هغه د دوی له بشپړې وتلو سره تړلی دی، که دوی په سلګونو داسي د شورا شوراګاني را وغواړي، له خپلو وتو څخه پرته له چل او فريب څخه ډکې د مذاکراتو لړۍ رواني کړي، خپلو لاسپوڅو او لړکيو ته واک ورپرېږدي، په مسلمانانو کې د نفاق د تخم شيندلو هڅې وکړي، يا په نورو ناوړو اقداماتو لاس پوري کړي، نو پايله به يې د افغانانو د ازمايښت له اوږدولو او د ځان له نورو کړاوونو سره له مخ کولو څخه پرته نور هيڅ نه وي، چې په اخير که به غرب په خپلو لاسونو غرب د غروب غېږې ته وسپاري، خپلې پراخې امپراتوري او واک ته به په خپل لاس او خپله ناپوهۍ د پای ټکی کيږدي.



# دحماس دتاسیس ۲۵ مه کلیزه

"بشیر"

څه موده وړاندې په غزه کې دفلسطین دمزاحمت اومقاومت ترټولو پیاوړې جهادي ګوند (حماس) لخوا دخپل تاسیس ۲۵مې کلیزې دلمانځنې په مناسبت ځانګړې مراسم اوترتیبات نیول شوي وه ، چې په کې دګڼون په موخه د ګڼو عربي اواسلامي هیوادو استازې اووفدونه هم په لومړي ځل غزي ته تللي وه.

په دې سربیره چې دا لمانځنه له هغه وروسته کېده ،چې په کلابنده غزه دغاصب اوظالم صهیونې رژیم لخوا تازه یو وحشیانه تاړاک تېر شوی و ، چې له امله یې دحماس دفترونو اومراکزو ته په شدید زیان رسیدو علاوه په لسګونو وګړي شهیدان اوپه سوونو ټپیان کړي وه.

چا چې په رسنیو کې داسرایل دظالمانه بمبارد له امله دهغه مهال دپېښو انځورونه لېدل هغوئ به ویلي :حماس چې بیا خپل ځای ته رسي کلونه به وغواړي ! خو ددې شاندارومراسمود انځورونو په خپریدو دغه تولې وړاندوینې ناسمې اوخطاء ثابتې شوې.

دمراسمو دپیل له شیبو وړاندې له هروخو دقیقو څنډ وروسته غزي ته دیوه ،یوه نه عربي یا اسلامي هیواد استازي به خامخا رسیدل ، دحماس غړیو اوځوانانو به هغوئ په ډېر تاوده هرکلي ویلو بدرګه کړل او هم هرلورته دحماس بیرغونه رپاند ځلېدل ...

بل غزي ته به چې کله دکوم هیواد استازي اووفد ننوت د وفد مشر به په داسې شان کې دغزي خاوره ګام اېښود چې هغه به خپل سر دفلسطین اوحماس په بیرغ کې پټ او پېچلی و...

دسیاسي چارو کتونکو په اند:غزي ته له اسلامې اوعربې نړۍ څخه دومره لوی شمېر وفدونه ور تلل جوتوي چې په نړۍ اوسېمه کې دحماس دسیاسې مقبولیت ګراف په پورته کېدو دی، او دسېمې دیوه مؤثر ځواک په حیث ټولو تسلیم کړی دی.

له بهره ورتلونکیو میلمنو لپاره دفوق العاده میلمه پالنې په غرض په شنو پارکونو ، او میدانونوکې که خیمو نه ځانګړې میلمستونونه جوړ شوي وه،دحماس دغړو ترځنګ د چارو په تنظیمولو کې یې دغزي ښاریانو ونډه هم دپام وړ وه.

داچې په لومړي ځل غزی ته له بېرون عربي اواسلامې هیوادو ګڼ استازي او وفدونه لاړوه ، په دې دغزي د ښاریانو په مخونو کې د خوښۍ او ډاډنښې ځلېدې هغوئ پرې یو ډول نوی باور احساساوه ، دحماس د مجاهدینو مورالونه اورحیات پرې لوړېښکاریدل.

په همدې وخت کې دغزي دخلکو اوحماس لپاره ترټولوبل خوشالونکی منظرداوه چې دحماس دسیاسې چارو مشر خالد مشعل هم داوږدې جبري جلا وطنۍ وروسته په لومړي ځل غزي ته لاړو ، غزي ته په رسیدو نوموړي ته ښه تودهرکلی وویل شو په داسې وخت کې چې په ملګرو ملتو کې فلسطین دیو مبصر هیواد په توګه تازه پېژندل شوی ، دادنورو ترځنګ دخالد مشعل دهڅو یوه لاس ته راوړنه ګڼل کېده ، چاچې له دې څخه وړاندې په بېلا بېلو عربې هیوادو کې دجلاوطنۍ ورځې شپې تېرولې.

غزې ته له رسيدو وروسته نوموړي دحماس دمؤ سس شهيد شيخ احمد ياسين په کور کې دزرګونو خلکو يودرنې غونډې ته په وينا کې وويل: داچې زه ديوې اوږدې جبرې جلاوطنۍ وروسته خپل هيواد ته ستون شوی يم ، نودا ذما لپاره داسې ده لکه چې دريمه زوکړه مې وي ، زه لومړی په ۱۹۵۲ز کې زېږېدلی يم ، دويم هغه مهال زه بيا وزېږېدم چې په ۹۷ ز کې کله زه ديوه مرګونې بريد له سازش ژوندی پاتې شوم ، دريم نن داسې ده لکه چې بيا زېږېدی يم ،داده چې ديوې اوږدې جبرې جلا وطنۍ وروسته خپلې خاورې ته راغلی يم ،له الله ( ﷻ ) څخه دعاکووم چې ماته پخپل ژوند کې څلورم ځل زېږېده چې فلسطين ازاد شي ، زه اقصی مسجد ته ولاړ شم ، حيفا او يافا ته لاړشم ، هم راپه برخه کړي ، دائما خوبونه لېدل ندي لبکې ذما دژوند هدف دی که دالله( ﷻ ) خوښه وه هغه ورځ لرې نده چې هغه ورځ هم ووينم !

خالد مشعل دفلسطين د شهيدانو روحونو اود فلسطين ولس ته په خطاب کې وويل موږ دخپل ټول ولس اوشهيدانو پوروړي يو !دا چې نن دلته پخپله خاوره کې يم په دې دالله( ﷻ ) شکر کاږم ، داهرڅه دالله( ﷻ ) فضل ، لوړېنه دشهيدانو دوينو ، دفلسطيني ولس دلوړ عزم نتيجه ده ، زه خپلو هغو ميندو ته سلام وړاندې کووم چاچې دخپلو زړونو ټوټې دفلسطين دازادۍ په لار کې قرباني کړي دي ، هغو خويندو ته مبارکې او پرې شاباسې وايم چې يې خپل ورونه په صهيونې دښمن حملو اوبريدونو ته هڅولې دي ، له هغه مشرانو هم مننه کووم چې دفلسطين دازادۍ په لار کې دخپلو مالونو اوځانونو قربانول ندي دريغ کړي اوددښمن ټولې شيطانې دسېسې اوپلانونه يې شنډ کړل نوموړي هوډ وښود : چې دوی به هېڅکله هم دفلسطين يوه لويشت خاوره صهيونستانو ورنکړي.

دنړيوالو سياسې کتونکو په اند : غزې ته دخالد مشعل ببرته ستنېدل ،هلته په دومره سترو مراسمو کې ګډون او استقباليدل يې ،هم دګڼو اسلامې اوعربې هيوادو داستازو او وفدونو غزې ته تګ په حماس کې نوې ساه پو کړه ، داخبره روښانه اومنل شوې چې دحماس لپاره دخالد مشعل سياسې مشرتوب نهايتې سودمن ثابت شوی دنوموړي دپرلپسې سياسې هڅو په نتيجه کې دفلسطين ستونزه په نړيواله توګه دبحث موضوع ګرځيدلې ، په ملګرو ملتونو کې فلسطين ديوه مبصر هيواد په توګه دمنل کېدو وروسته اوس ددې لپاره سفارتې اوديپلوماتيک کوښښونه تيز شوي چې په ملګرو ملتونو کې فلسطين د يوه خپلواک او آزاد هيواد په توګه په رسميت وپېژندل شي

داخبره هم دخوښۍ وړده چې الفتح ګوند لخوا هم غزې ته دخالد مشعل دببرته ستنيدو هرکلی شوی دی ، اودا حتمې ده که دفلسطين ټولې ډلې په يوه ټغر راټولې شي ، اوپه ګډه دستونزې دهوارې لپاره يو ځواک شي ، نودعمل په ډګر کې به يې لاس ته راوړنې هم زياتې وي ، ولې په نړيواله سطحه دفلسطين په ضد په ډېره لويه او پراخه کچه سازش جوړونکې ذهنيتونه کا رکوي ښه داده چې دفلسطين بېلابېلې ډلې سره پخپلو کې يو ځواک شي

دامريکا ديوه وتلې سياست پوه نوم چومسکی په وينا : اوس هغه وخت لنډدی چې فلسطين ديوه آزاد هيواد په حيث ومنل شيو ولې اوس دفلسطيني ستونزې په برخه کې امريکا اواسرايل يوائې شوی ،نوره نړۍ دفلسطين موقف تايدوي اوامريکا وړاندې هڅه وکړه څو دفشار اچولوله لارې دفلسطين دولت ديته اړباسې چې هغه ملګروملتونو ته رجوع ونکړي، خو دفلسطيني دولت دازړورتيا چې له خپلې پريکړې وروسته نشو اوترپايه پخپل دريځ ټېنګ پاتې شو د ستاينې وړ ده ،ولې که دفلسطين دولت دامريکا دفشارپه نتيجه کې له خپلې غوښتنې په شا لاړ وای ،نن به فلسطين په هغه موقف کې نه وپه کوم کې چې نن ورځ دی.



# د صلیبي ښکېلاک په مقابل کې ښځې هم په غوږ ځنګ دي

تاسو به له مطبوعاتو څخه اوریدلي وي، چې د افغانستان په زړه کابل کې د امن تامینونکو په کور د امنیې په قومنداني کې د کورنیو چارو له وزارت سره تړلي د یو امریکائي سلاکار په زړه کې په ایکي یواځې ګولۍ، ایکي یواځي سوری وشو.

نن سبا په افغانستان کې د بهرنیانو وژنه یوه عادي خبره ګرځیدلي ده، خلک یو بل ته وایې: والله! پرون پنځه خارجیان په کمین کې مړه شوو، یو ټانګ چې شپږ خارجیان پکښې سپاره وو په ماین وخوت، نن یو ټانګ د راکېټ خوراک شو، تیره ورځ خارجي الوتکه را نسکوره شوه، تیره شپه د ملي اردو عسکر اته خارجیان ووژل، داسي ګڼي نوري خبري او داده په وروستي وخت کې مو واوریدل چې یو امریکایي سلاکار یوې ښځې ووژل، په کابل کې د یو امریکایي دا وژنه په خپل ځای له دوو وجهو یوه منفرده او ځانګړې پېښه ده. لومړی دا چې د امنیې په قومندانۍ کې د درځنونو پولیسو په مخکې دا خارجي لوړ پوړی چارواکی ووژل شو، بل دا چې دا سلاکار امریکایي د کورنیو چارو د وزارت د یوې ښځېنه کارمندې له لوري ووژل شو.

تاریخ ثابته کړې ده، چې افغانستان یوه داسي خاوره ده، چې د یرغلګرو په خلاف د سړو په څېر ښځې هم په خپل ځای له خپلو امکاناتو سره سم غبرګون ښکاره کوي، چې په ګڼ شمېر یې تاریخي شهرت لري، د هغوی له جملې څخه د بېلګې په توګه د دوه ښځینه اتلانو یادونه لاندې کیږي.

کله چې په هند کې سیکانو واک تر لاسه کړو او تر ډیره حده پوري پیاوړي شول، په شاو خوا سیمو یې حملې پېل کړې، نو احمد شاه بابا په کندهار باندي د مضبوط دیوال او حصار جوړولو کار پېل کړو، د هغه مور نازو انا احمدشاه بابا را وغوښت پوښتنه یې ترېنه وکړه: بچیه څه کار دې پېل کړی. احمد شاه بابا وویل: له کندهار څخه حصار را تاووم، تر څو د سیکانو د حملې په صورت کې له کندهار څخه دفاع وکړو. نازو انا ورته وویل: او له حصار څخه د باندي مسلمانانو دفاع به څوک؟ لاړشه حصار پرېږده او د ټولو مسلمانانو غمه وخوره. احمد شاه بابا د نازو انا له وېنا سره سم له حصار جوړولو څخه ډډه وکړه، د خپل ځواک د پیاوړي کولو په هڅه کې شو، داسي وخت راغی چې د غښتلي سیکانو حکومت یې داسي ختم کړو، چې تر اوسه بیا واک ته نه دي رسیدلي، د هند مسلمانان یې د هغوی له شر څخه وژغورل. ځینې خلک د احمد شاه بابا د هند په نیولو نیوکې کوي، خو باور وکړئ، که چیرته احمد شاه بابا د خپلي مور په نصیحت او د محدث دهلوي شاه ولي الله صاحب په دعوت عمل نه وای کړی، هند ته نه وای راغلی نو نن به د هندي مسلمانانو نومونه مامدسنګ، جانباز سنګ او شهباز سنګ وو.

همداسي یوې پېغلي ملاله چې د انګریزانو په خلاف د سردار محمد ایوب خان په مشري د میوند په تاریخي غزا کې برخه اخستي وه، کله چې هغې ولیدل چې غازیان د شاتګ او شکست په حالت کې دي، د انګریزانو زور په زیاتیدو دی، نو پر غازیانو یې داسي نعره وکړه:



که په میوند کې شهید نشوې
خدایګو لالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه

دا نعره چې کله غازیانو واریده نو وینه یې ځپان ځپان او پر جوش راغله، ستړیا یې ختمه شوه، په دښمن د زمرو په څېر ببرته ور وګرځېدو او داسي سخته جګړه یې وکړه، چې دښمن ته یې تاریخي شکست ورکړو، له دیارلس زرو څخه زیات انګریزي او هندي لښکریان ووژل شوو.

په اوس مهال کې هم د طالبانو او د صلیبیانو د متحده لښکرپه منځ کې جګړه وروستي حد ته رسیدلې ده، صلیبیان له ناوړه حالت سره مخ دي، د طالبانو له حملو څخه پرته پرې کله د ملي اردوعسکر د ټوپک شپېلۍ را واړوي، کله پرې دیوال را غورځیدلی وي، کله سیلاب له ځان سره په مخه کړي وي، کله ګړنګ‌ته ور غورځېدلي وي او کله یې بیا چورلکې په اضطراري نشسست مجبوره شوي وي، خو د دې ټولو حملو سربېره پرې ښځو هم له فرصت څخه په استفادې کله فدایي بریدونه کړي، کله یې مخامخ په دښمن بریدونه کړي، کله یې مجاهدینو ته د معلوماتو په ورکولو دښمنانو نه زیات تاوان وراړولی دی، دا دی په وروستي وخت د کورنیو چارو د وزارت د یوې لوړ رتبه افسري (غازیه) نرګس له لوري پرې ګزار ډېر دروند او تندریز دی. که غربیان هر څومره د ښځو د حقوقو چغې وهي، دوی وایې موږ ښځو ته خپل حقوق ورکوو او داسي ګڼ نور... خو غازیه نرګس ثابته کړه: غرب ته یې په ډاګه وویل: ستاسو حقوق حقوق نه دي. موږ له تاسو څخه حقوق نه غواړو، موږ ته اسلام خپل حقوق راکړي دي، او دا چې له تاسو سره موږ په هغه اندازه کرکه لرو په کومه اندازه یې چې نور مسلمانان او طالبان لري. او دا چې ستاسو په خلاف نفرت ورځ تر بلې مخ په زیاتیدو دی.

غربیان هڅه کوي، چې د غازیه نرګس برید عادي وګڼي، خو دا یو منل شوی حقیقت دی، چې د نړۍ په تاریخ کې داسي پېښې ډیرې کمې را منځته کیږي، دا پېښه له یو لورې د افغاني میرمنې شجاعت او له بل لوري څخه له یرغلګرو سره په پراخه کچه نفرت په ډاګه کوي.

غازیه نرګس په خپلې یوې مرمۍ جهادي ډلو او مامورینو ته چې د موجوده حکومت په غېږ کې پراته دي، داسي پیغور ورکوي، چې تاسو خو د جهاد في سبیل الله او مقاومت خبري کولې، اوس یې سم وخت راغلی، نو که د نرانو په څېر د غره سر ته نشي ختلای، له طالبانو سره په یو لار نشي تلای، نو زما په څېر خو په کابل کې د یو امریکایي یا بل خارجي سر په ګولۍ ور سوری کړئ.

غازیه نرګس په خپلې یوې مرمۍ طالبانو ته هم په چوپه خوله پیغام ورکوي، چې د غربیانو په چل کې را ګیر نشي او د مقاومت لاره پرې نږدي، خپل تندریز بریدونه پرې نور هم زیات کړئ او که چیرته زما په څېر کوم افغان په لاس درشي، نو د خدای لپاره ترحم پرې وکړئ، ځکه زموږ او تاسو په ظاهري لباس او حلیه کې توپیر شته خو په باطن او اسلام کې مو هیڅ توپیر نشته

غازیه نرګس په خپلې یوې مرمۍ هغو عربانو ته چې په مزواو چړچوکې غرق او د اسلامي امت له ځارځېلي حالت نه بې حسه دي هم پیغور ورکوي، چې اسلام په غټو چلتارونو او غټو قمیصونو نه ساتل کیږي، په خپلو هیوادونو کې میشت نظامي صلیبانو او د هغوی په اډو بریدونه وکړي، د ټوپک شپېلۍ دې پرې راواړوي او د هغوی په بدن کې دې خپلې ګرمې ګولۍ سرې کړي موږ په خپل هیواد کې له تیرو پنځه دیرشو کلونو څخه په جهاد بوخت یو، خو تاسو په خپل هیواد کې د یوې ورځې لپاره ټوپک را پورته نکړو، چې نن را وېښ نشي، بیا مو له مهدي پرته بل څوک نشي را ویښولای؟

غازیه نرګس غربي نړۍ ته په خپلې ایکې یوې مرمۍ داسي پیغام ورکړو: دا هیواد تاسو خپلولای نشئ، له مسلمانانو څخه پرته دلته بل څوک حکومت نشي چلولای او که سړو له مقاومت څخه لاس واخست، نو موږ ښځینه مو هم نه پر پرږدو او د یوې مرمۍ په بڼه یې تاریخي ټپه داسي زمزمه کړه:

که له زلمیو پوره نشوه
ګرانه وطنه جینکۍ به دې ساتینه



# دار

مولوي عبدالديان تکل

چې په درسته نړۍ بار شوم یادید ې م ې
دادی گرانه له تاز ار شوم یادېد ې م ې

اوس نوستړی مه شې خوره ابدیته !
ته م ې یارشوې زه د ې یارشوم یادیدې م ې

ته خبریې ؟ زه په تـاپس ېوم ستړی
عشقه ځکه د ې په کار شوم یادېدې م ې

ړنگ گودره ! په اوره م ې دی سر ایښی
دنگ چناروم ړنگ چنار شوم یادېدې م ې

زمانه چې له منصوره تشــه نشـ ې
راته وگوره ! په دار شــوم یادید ې مې

دتـکل قلـم د ې هم په ما شاهد شي
لیونتوب نه د ې هوښیار شوم یادېدې م ې

# غزل

پیرمحمد کاروان

نه چې څاروان یې راته وخوري پر کاروان ویرېږم
خدایه ایمان مې سلامت کړې پر ایمان ویرېږم

غره راته وې د راز په ژبه چې سور اور به واخلم
نن چې منو ڼکی د شیطان شو له انسان ویرېږم

نه چې د شاتو د مچۍ په شان ترې توري ولاړ شي
قربان قربان یې شم په خدای چې په قران ویرېږم

دا جادوگر ماران په ذهن کې هم ځالې کوي
هم له لستوڼي خطر شته هم له گرېوان ویرېږم

د مادیت ونو شین باغ د ژوندانه نیولی
په زغرده وایم د ډبرو له باران ویرېږم

په مخ کې پروت راته زخمي راته رنځور د مودو
د طبیب سترگې زهرجنې له درمان ویرېږم

پردي لاسونه راته ډک له گړنگونو ښکاري
خبره داده چې پر خپل افغانستان ویرېږم

د سر سړی دې مه مره د کتار سړی دې مه مره
افغانه ! خدای دې وساته د کار سړی دې مه مره

جو مات حجرې ، لښکرې انغرې دې ساړه مه شه
د چیغې سړی دې مات مشه د وار سړی دې مه مره

اتل

# غزل

مولوي عبدالاحد جهاد

دباطل بری موندل په حق محال دی
همیشه بر دعیسی لاس په دجال دی

چي دقام دغمو اوريې په سربل وي
هغه سر ددغه قوم بل مشال دی

داذان توري په ډيرو خولو وايه شي
چي ويده قامونه ويښ كاندي بلال دی

دزاهدا ودمين يارانه كټ مټ
له موسی سره دخضر قيل اوقال دی

په هيواد دترورېم ی ورځې ي په شمار شوې
ليدل سوی دپامير په غره هلال دی

خپلواكي دانقلاب بيګانه نه كړي
جاروانه دزوی له مورڅخه وبال دی

له مكاردښمن نه دين اومذهب سات ئ
لري ژبه خرمهره لاسوكي لال دی

درقيب له سياليه بې غم مه ش ئ
شيطان تل له آدم زادوسره سيال دي

دهيواد غوڅ شوې څانګې پيوند غواړي
چا غوڅ كړی په جنوب چا په شمال دی

ټول دعشق په اور رسيږي تر منزله
نقبا كه نجبا دي كه ابدال دی

ښاماران تريمني ياقوت چاپېردي
كه زماتر زړه چاپېردزلفو جال دی

كږې وريځې يې ليند ې، باڼ ه يې غشي
پرې ښكار كړی يې زما دزړه غزال دی

دحماد شعرخ وښيږي دمينو
رسيدلی اوس تازه ترخط اوخال دی

# جهاد

حاجي محمد اواب

څه په مستۍ تيزۍ روان دی جهاد
زموږ په كلي كې لاځوان دی جهاد

چې په كې سوزي لكه بوټی دښمن
يو مست تنور دمست افغان دی جهاد

په دغه ټينګ يې هم دمات ږغ وكړ
بيا دپايلوچ افغانستان دی جهاد

د وخت عاديان به زاره چاودي كړي زر
ږغ دملكې دسبحان دی جهاد

رښتيا په وران ګودر ملكې ګرځي
اوابه هو هلته ودان دی جهاد

# غزنی هيواد

عرفان الله "عرفاني"

مجاهد يو لرو مينه دجهاد
غزني يو غزنی لرو هيواد
ټول جهان ته خو مو ځكه غيږ وركړی
ختمو وترې خامخا شر او فساد
دطاغوت لښكر به بيا په ساندو سر شی
په ملكو مو رب كړی ده امداد
هر باطل ابن باطل به را نسكور كړي
مسلمان ملت بيا كړی اتحاد
چې دعوی يې دخدايي كړې هغه څه شول
كه فرعون و كه نمرود و كه شداد
له پخوا نه مو بلندې حوصلې دي
نه ماتيږی زمونږ زړونه دي فولاد
چی وطن له استعماره ځينې ژغوري
دا زلمي دې وي آباد او زنده باد
څوک چې خپل حريم پرديو باندې پلوري
وي برباد دې دانامرده مرده باد

# دغزې مظلومیت ،

لیکنه: قاري حبیب

# زموږ دیوې ټولنیزې ګناه پایله ده

## دغزې وروستی جنګ

د روان ۲۰۱۲ کال دنومبر میاشتې په ۱۲ اسرائیلو په غزه برید وکړ چې د نومبر تر شلمې یې اته ورځې دوام وکړ ، په دې جګړه کې چې اسرائیلو له مختلفو جنګي الوتکو څخه په کې استفاده وکړه ، ۱۲۲ فلسطینیان په کې شهیدان او نږدې ۱۱۰۰ تنه ټپیان شول، په فلسطیني شهیدانو کې دحماس دنظامي بخش ( کتائب عزالدین القسام ) مشر أحمد الجعبري هم وو ، په دې جګړه کې دغزې واکمن فلسطیني ګروپ حماس په اسرائیلي ښارو تر ۲۰۰۰ ډیر توغندي وتوغول ، چې د رسنیزو راپورونه له مخې په کې ۵ تنه اسرائیل ووژل شول او لسګونه نور ټپیان شول.

داسرائیلو او فلسطینیانو ترمنځ دغه جنګ د نومبر ۲۱ مه له هغه وروسته ظاهرا پای ته ورسېد ، چې کله دمصر په منځګړیتوب دواړو خواوو داوربند طرحه ومنله ، د نومبر ۲۱ مه داوربند له نافذیدو وروسته که له یوې خوا داسرائیلو دفاع وزیر ایهود بارک وویل چې جګړه یې ګټلې او خپل اهداف یې ترلاسه کړې له بلې خوا په غزه کې هم ګڼ فلسطینیان په جشن کوڅو ته راووتل او دفتحې مېله یې ولمانځله .

دا چې دا جګړه چا وګټله ؟ هغه پوښتنه ده چې ښایي ځواب ورته ویل اسان نه وي ، دجګړې ګټل او بایلل له نظامي ، عقیدوي ، اخلاقي او رواني لیدلوریو مختلف مفاهیم لري ، خو که له نظامي اړخه وګورو چې په جګړه کې مهم فکتور بلل کیږي ، نو دغزې اوسنی جګړه داسرائیلو په ګټه پای ته رسیدلې ده .

دتلفاتو له اړخه دفلسطینیانو تلفات داسرائیلو په نسبت تر پنځلس چنده هم زیات دي ، په دې سربیره فلسطینیانوته تر اټکل لوړ مالي زیانونه رسیدلي دي ، چې داسرائیلو په خوا کې له مالي زیانونه سره په هیڅ ډول دپرتلې وړ نه دي ، اسرائیلو ته رسیدلی مالي زیان دفلسطینیانو د بریدونو له امله نه دی ، بلکې دهغو مصارفو له امله دی چې دخپلو جنګي امکاناتو دکارولو په وخت یې خرچ کړي دي ، په دې برخه کې داسرائیلو دنوي دفاعي سیستم ( اوسپنیز ګنبد ) دفعالیت مصارف دیادولو وړ دي ، چې هر دفاعي توغندی یې ۲۰ زره ډالره قیمت لري ، او په دې څو ورځنۍ جګړه کې یې باید دفلسطینیانو دهر راکټ د دفاع لپاره دوه توغندي خوشي کړي وي.

دکتونکو په باور دغزې له اته ورځني جنګ څخه دحماس زور آزموینه ، چې ویل کیږي په دې وروستیو کې یې نوي توغندي ترلاسه کړي دي ، دفلسطیني مبارزینو پوځي او اطلاعاتي امکانات تخریبول ، دکمپ دیوید ، سینا دښتې او رفح بندر دقراردادونو په اړه دمصر دنویو واکمنو دریځ امتحانول او په ټوله کې دفلسطین دقضیې په اړه دمصري اخوانیانو جاج اخیستل ، دغه راز دنوي توغندي ضد اسرائیلي دفاعي جال عملي ازموینه داسرائیلو ستر اهداف وو ، فلسطیني مجاهدینو غوښتل له جنګي شرایطو په استفاده په اسرائیلو توغندویي ګوزارونه وکړي نوځکه یې دخپلو توغندوي بریدونو نوی

ریکارډ جوړ کړ او په یوه اونۍ کې په اسراییل تر دوه زره فیره ډیر میزایل وویشتل ، د جګړې له پای ته رسیدو وروسته داسې ښکاري چې اسرائیلو د محصورو فلسطینیانو په نسبت خپل اهداف په ښه ډول ترلاسه کړي دي ، ښکاره ده چې دفلسطینیانو مظلومیت او محکومیت په درسته نړۍ کې دمسلمانانو دضعیف حال غوندې تاریخي عوامل لري ، او دهغه حدیث شریف مصداق یې بللی شو ( چې په اخره زمانه کې به کفار په مسلمانانو دبرید لپاره داسې راټولیږي لکه له یوې کاسې دډوډۍ خوړلو ته چې راجمع کیږي ) خو که دظاهري اسبابو په تناظر کې ورته ګورو دفلسطینانو کمزوری جنګي دریځ داسرائیلو په نسبت دهغه نامتوازن پوځي ځواک له امله دی چې په هیڅ ډول دپرتلې وړ نه دی ، او دپوځي توانمندي له اړخه داسرائیلو همدا (برلاس ) دی چې نه یوازې یې فلسطین ترخپې پایلې ګالي بلکې ټولې عربي او اسلامي نړۍ ته دخطرزنګ غوندې شرنګیږي.

## دفلسطين او اسرائیلو دځواک موازنه

دفلسطینیانو په لاس کې هغه وسله چې اسرائیل پرې تهدیدولی شي یوازې هغه خپله جوړ کړي توغندي دي ، چې په بازار کې له اخیستو پاییونو یې جوړوي ، منځ یې دحق سوق لپاره له پوټاشیم او امونیم نایټریټ څخه ډکوي ، او په سرکه یې دانفجار لپاره څه ټي این ټي باورد وربدي چې داندا خت اعظمي حد یې تر ۲۵کیلومتره پورې اټکل کیدای شي.

• قسام راکټ

قسام هغه میزایل دي چې دحماس دپوځي څانګې ( کتائب القسام ) تخنیکي پوهان یې خپله جوړوي ، دا میزایل چې دقسام ۱ ، قسام ۲ او قسام ۳ په نامه بیلابیل ډولونه لري په پیل کې دفلسطیني پوهانو ( نضال فتحي اوشهید عدنان الغول ) لخوا طراحي او جوړ شول ، چې لومړی ځل د ۲۰۰۱ کال په پای کې له غزې په اسرائیلو وتوغول شول ، قسام توغندي چې له ازاد بازاره له اخیستل شویو اشیاوو څخه جوړیږي ، ترټولو قوي راکټ یې قسام ۳ دی چې ۱۰ کیلومتره لرې هدف ویشتلی شي.

• القدس راکټ

القدس راکټ چې دفلسطین اسلامي جهاد ډله یې په واک کې لري او کله ناکله یې په اسرائیلو فیر کوي ، په اصل کې دروسي ګراډ توغندي کاپي ده ، چې فلسطینیان یې خپله جوړوي ، دا توغندی چې ۲۲ کیلوګرامه وزن لري په ۱۸ کیلومترې کې هدف ویشتلی شي.

• د الفتح ګوند راکټونه

الفتح ګوند چې د اردن سیند په لویدیځه غاړه واک لري ، هم یو شمیر راکټونه په واک کې لري چې له دې جملې دیاسر عرفات نامه ته منسوب میزایل دیادولو وړ دي ، چې دفلسطینیانو په لاس کې ترټولو قوي راکټونه بلل کیږي ، خو دالفتح ګوند تراوسه دا وسله په اسرائیلو نه ده کارولې نو ځکه دمؤثریت په اړه هم ډیر څه نه شي ویل کیدای ، په دې سربیره الفتح د کفاح ، الاقصی ، ناصر او په نورو نومونو هم یو شمیر راکټونه په واک کې لري دغه راز دالبناء په نوم دټانګ ضد توغندي هم دفلسطینیانو یوه مهمه وسله بلل کیږي چې داسرائیلو دزمیني تعرض په مهال ترې استفاده کوي.

دفلسطینیانو په لاس کې موجوده لویه وسله تقریبا په همدې کې خلاصه کیږي ، له دې پرته دفلسطینیانو وسله او نظامي توانمندي له توکل محض ، سپکې وسلې ، لاسي لیندو او ډبرو څخه عبارت دی چې د اسرائیلي هوایي ، سمندري او زغروال ځمکني ځواک مقابله وربانديکوي.

داسرائیلو او امریکا فشار ددې باعث شوی چې د منځني ختیځ له هیوادونو څخه هیڅ هیواد هم دې ته اماده نه دی چې په فلسطینیانو وسله وپلوري ، همدا لامل دی چې له نیمې پیړۍ راهیسې فلسطیني مبارزین داسرائیلو زور او جبر ته په تش لاس ولاړ دي ، او په درنو قربانیو یې مقابله کوي.

بالمقابل اسرائیل په نړیواله سطحه دنظامي ځواک او قوت له اړخه یوولسم ځای لري چې دا دټولو عربي هیوادونو په پرتله بې ساری ځواک دی ، په منځني ختیځ کې تر اسرائیلو وروسته قوي هیواد مصر دی چې په نړیواله کچه اوولسم ځواکمن هیواد بلل کیږي .

داسرائیلو پوځي ځواک له فلسطینیانو سره هیڅ دموازنې وړ نه دی ، خو که دعربي نړۍ دترټولو ځواکمن هیواد( مصر ) په نسبت یې واخلو بیا هم اسرائیل په ځواکمن حالات کې قرار لري دبیلګې په توګه دمصر او اسرائیلو د پوځي ځواک دموازنې شرحه په لاندې ډول ده .

## دفاعي بودیجه :

مصر : ۲ اعشاریه ۵ بلیون ډالره

اسرائیل: ۱۸ اعشاریه ۷ بلیون ډالره

برحاله پوځ

مصر: ۴۵۰۰۰۰ تنه

اسرائیل: ۱۸۹۰۰۰ تنه

احتیاطي ځواک

مصر: ۲۵۴۰۰۰

اسرائیل: ۴۰۸۰۰۰

جنګي او استطلاعي الوتکې

مصر : ۱۲۳۰

اسرائیل ۱۲۳۰

جنګي او نورې چورلکې

مصر: ۲۴۳

اسرائیل : ۳۸۲

ثابت توغندي ویشتونکي او دهوایي دفاع تاسیسات

مصر: ۹۳۵۷

اسرائیل : ۱۴۲۰۰

په دې سربیره هغه څه چې په منځني ختیځ کې یې د ځواک معادله ګډوډه کړې ده ، او اسرائیلو ته یې دمنځني ختیځ په عربي هیوادونو پوځي برلاسي ورکړې ده ، داسرائیلو سره موجود قاره پیما توغندي او مرموز اسرائیلي اټومي پروګرام دی ، داسرائیلو د ترټولو اوږد واټنی توغندی ( جریکو ۳ ) یادیږي چې په اټومي انرژۍ الوزي او تر ۵ زره کیلومتره پورې مزل کولای شي ، داسرائیلو دپوځي برترۍ بل فکتور ددې هیواد دفاعي سیستم دی ، داوسپنیز ګنبد په نامه درادار او هوایي دفاع هغه سیستم چې له څوکلونو وړاندې اسرائیلو کارکاوو ، څو پایي تیر کال دغزې سره په حدودو کې نصب شویدي.

## دابحث مې ولې راپیل کړ

داسرائیلو او فلسطینیانو د وروستۍ جګړې په مهال مې څو ورځې دجګړې حالات تعقیبول ، دغه راز ددواړو خواوو سیاسي او پوځي دریځونه او مطبوعاتي اطلاعات مې هم ترېوه حده کتل ، د جګړې په ترځ کې راته څرګنده شوه ، چې له دې سره چې فلسطینیان دایمان په وسله سمبال ، فداکاران او دسیمې او نړۍ په کچه له ډیرې خواخوږۍ او ملاتړ څخه برخمن دي ، مګر بیا هم داسرائیلو بې ساری تخنیکي او پوځي تفوق ددې لامل شوی دی ، چې جګړه داسرائیلو په ګټه او دفلسطینیانو په زیان پای ته ورسیږي .

موږ په دې ایمان لرو چې په جهاد کې دبریالیتوب لپاره اساسي شرط داللهي نصرت ملتیا ده ، خو ظاهري اسباب ، وسله او جهادي وسائل تیارول او درلودل هم دالهي ارشاداتو او نبوي احادیثو له مخې دجګړې دګټلو لپاره لازمي شرائط دي.

لکه څنګه چې وایي ( الدنیا بالوسائل لا بالفضائل ) که موږ دجهاد په اړه الهي فرامین او نبوي ارشادات سم مطالعه کړو ، نو لکه څومره چې په جهاد کې په توکل ، قوي ایمان درلودلو او کلک عزم ساتلو باندې تاکید شوی همدومره دجهادي اعداد او ظاهري اسبابو تیارول هم د اسلامي مجاهدینو لپاره ضرور بلل شوي دي.

الله تعالی د سورة الانفال په ۶۰ آیت کې فرمایي ( واعدو لهم ما استطعتم من قوة ومن رباط الخیل ترهبون

به عدو الله وعدوكم (الاية ) تاسو چې څومره طاقت لرئ قوت او آسونه دكفارو دمقابلې لپاره تيار كړئ ، ترڅو دالله تعالى او خپل دښمنان وربانديې وويروئ .

آسونه خو دصدر اسلام دمهال جنګي وسيله وه چې اوس يې ځاى ټانګ ، پوځي موټر ،الوتكې ، چورلكې ، بحري بيړۍ يا اوبتل نيولى دى ، مګر دقوت په باره كې مفسرين وايي چې مراد ترينه جنګي تدريب او د غشو ويشتلو تمرين دى ، چې اوس يې دكلاشينكوف ، توغندي ، يا بلې جنګي وسلې زده كړه بللى شو .

عن عقبة بن عامر يقول : سمعت رسول الله - صلى الله عليه وسلم - يقول وهو على المنبر ) : وأعدوا لهم ما استطعتم من قوة (ألا إن القوة الرمي ، ألا إن القوة الرمي ).

دغشو ويشتلو دفضيلت په باره كې نورهم خورا ډير احاديث راغلي دي ، دغه راز دنبي كريم صلى الله عليه وسلم جهادي ژوند او دجهادي اسبابو جوړولو او تيارولو ته يې اعتناء دا په اثبات رسوي ، چې جنګي اسباب او وسلې جوړول او ميندل له سترو ديني او جهادي فرائضو څخه دي .

جهادي اسباب او وسائل خو هغه څه دي ، چې دامت دبقاء او عزت مسئله ورسره تړلې ده ، په عادي شيانو كې فقهاء فرمايي چې كه دمسلمانانو دګنډلو يوې ستنې ته ضرورت وي ، نو دستنې جوړولو صنعت زده كول په ټولو مسلمانانو باندې فرض كفايي لازم دي او كه چيرې دمسلمانانو له منځه يې هيڅوک هم زده نه كړي ، نو دفرض كفايي دترک له وجې ټول ګنهګار بلل كيږي.

د غزې په جنګ كې دناكامۍ او په فلسطين او درسته اسلامي نړۍ كې دمسلمانانو دمظلوميت او محكوميت لپاره به شايد هرڅوک خپل خپل دلائل تراشي ، خو زما په باور ددې معاصر عامه محكوميت يوازيني علت زموږ ( مسلمانانو ) هغه ټولنيزه ګناه ( دجهادي ټكنالوجۍ زده كړې ته نه اعتناء ) ده چې ټول په كې ككړ يو ، او له امله يې الله تعالى داسې ذلت راباندې مسلط كړى چې ۷ ميليونه يهود مو ديونيم ملياردي اسلامي ملت په اوږو راسپاره دي ، خو داسې نر نشته چې چپ ورته وګوري.

آيا دامت په منځ كې دايمان والا نشته ، ايا دامت ميندې د غيرتمنو زامنو له زيږولو شنډې شوي دي ، آيا دعربي ځوانانو په رګو كې دخالد بن وليد ،محمد بن قاسم ، موسى بن نصير او عزالدين قسام وينې نه بهيږي چې داسې بده ورځ ده ؟؟ نه امت هماغه امت دى ، خو... خو تشه لاسه ته مې دښمن يې..

موږ الحمد لله مسلمانان يو ، موږ غيرت لرو ، موږ دايثار جذبه لرو ، خو موږ په ټولنيز شكل له ډيرې مودې يوې ګناه ته ملا تړلې ، هغه دا چې موږ له خپل دښمن سره موازي د نوي ساينس او جنګي ټيكنالوجۍ دزده كړې او خپلولو ضرورت نه دى پيژندلى ، موږ د ( اعدوا لهم ما استطعتم من قوة ) الهي امر ته لبيک نه دي ويلي ، نوځكه مظلوم او محكوم پاته يو .

اسرائيل دجرمني اشپيګل مجلې په استناد په لسګونو اټومي بمونه او توغندي لري ،اسرائيلو داسلامي نړۍ دهر پايتخت په هدف يو يو اټومي ميزايل تيار توغولو ته اماده كړى دى ، چې يوازې ديوې ماشې راكاږلو ته اړتيا لري ، هغه توغندي چې پنځه زره كيلومتره مزل كوي او تقريبا داسلامي امت ټول مهم ښارونه هدف ګرځولى شي ، دغه راز يې خپلې دفاع ته هم ډيره توجه كړې ، دا اوسنى دفاعي سيستم چې دغزې جنګ يې دهغه دازمويلو لپاره پيل كړى وو ، په ټوله دنيا كې منفرد او پرمختللى دفاعي سيستم دى چې طراحي يې داسرائيلو په نوم ثبت شوي او اوس يې دهند ، سنګاپور او جنوبي كوريا هيوادونو هم ترې اخلي ، دې سيستم وكړاى شول چې له غزې څخه توغيدونكي دفلسطينيانو په سلو كې اتيا توغندي په هوا كې له منځه يوسي ، دا سيستم چې نه يوازې لنډ واټني توغندي دفع كولاى شي ، بلكې دپيټرياټ سيستم د درلودو له امله دمنځني واټن ، اوږده واټن ميزايل ، بالستيكي توغندي او پردۍ الوتكې هم هدف ګرځولى شي ، اسرائيلو خپله د

ورځې ډوډۍ نيمه کړې او دملياردونو ډالرو په خرچ سره يې دادفاعي سيستم ترلاسه کړی دی.

مګر موږ ( مسلمانان ) په داسې حال کې چې له هرې خوا راباندې را رغښتې ، او دتاريخ په ترڅولو بد پړاو کې سلګۍ وهو ، لا هم دخپلې دفاع او ځواک موندلو ضرورت ته متوجه نه يو ، موږ لا هم په دې اړه يوې کره پريکړې ته نه يو رسيدلي ، چې آيا نوی ساينس او ټيکنالوجي يو ضروري او مهتم بالشان علم دی او که نه دی ، موږ ته دماقبل الميلاد يوناني منطق او هيئت علم ښکاري ، خو نوی جهادي ټيکنالوجي او ساينس چې موږ يې د نه درلودلو له امله دهر ګبر او ترسا بمبار او ظلم ته ترلي يو ، لا يې هم موږ دزده کړې ضرورت نه دی حس کړی.

په دې مابين کې حالات دې ته رسيدلي چې موږ ته دلمانځه مصلی هم جاپان جوړوي ، اود ذکر تسپې هم راته هغه دهري چينايان جوړوي چې په الله تعالی هيڅ باورنلري

په نړيواله کچه دښمنان لګيا دي په نويو موندنو سره خپل پوځي امکانات قوي کوي ، دوی غواړي راتلونکي جنګونه کمپيوټري کړی لکه اوس چې کمپيوټري شوي دي ، همدا اوس هغه بې پيلوټه طياره چې په هلمند او کونړ کې زموږ په مجاهدينو بمبار کوي ، کنټرولوونکي يې زرګونه کيلومتره لرې دامريکا په فلوريډا کې ناست دی ، که موږ همداسې بې تفاوته پاته شو ، او له نويو ساينسي پرمختګونو سره ځان اشنا نه کړو ، نو راتلونکې جګړې مو سر له اوسه بايللي دي ، که موږ بيدارنه شو په راتلونکې که به زموږ کيسه هم دفلسطينيانو غوندې وي ، زموږ مصنوعي ميزايل به دامريکايي دفاعي سيستم لخوا په هوا کې خنثی کيږي ، موږ به په خپل کور او کلي کې دامريکايي بې پيلوټه الوتکې ښکار يو ، چې بيا به دجنګ ، سولې او هرې معاملې پريکړه ددښمن په خوښه ټاکل کيږي ځکه چې ابتکار به ددښمن په لاس کې وي او موږ به لکه لاس ترلي اسيران خپل برخليک دخپل بې رحمه دښمن په تندي کې لټوو.

## دتجربوي علومو فرضيت او زموږ دنده

شهيد مولوي نصرالله منصور به شايد ټول پيژنئ ، دتير روس ضد جهاد په مهال دحرکت انقلاب اسلامي تنظيم ديوه بخش مشر وو ، نوموړی متبحر عالم ، مدرس ، حافظ الحديث او ستر مفتي او ددينې علومو متخصص وو ، نوموړي دعلومو دديني حيثيت په اړه يوه کوچنی کتاب ليکلی چې نوم يې دی ( ښوونه او روزنه داسلام په رڼا کې ) داکتاب مې همدا اوس مخې ته پروت دی ، دکتاب په اتلسمه صفحه کې هغه علوم بيان شوي چې زده کړه يې په ټولو مسلمانانو فرض کفايي ده ، يعني دمسلمانانو له منځه بې يوه ډله بايد خامخا زده کړي ، په دې برخه کې د تبيين المحارم کتاب په حواله ليکي ( و اما فرض الكفاية من العلم فهو كل علم يستغنى عنه في قوام أمورالدنيا والدين كالطب والحساب والنحو والصرف و........ وكذا علم الاثار والاخبار والعلم بالرجال واساميهم ، واسامي الصحابه وصفاتهم والعلم بالعدالة بالرواية والعلم باحوالهم لتميزالضعيف من القوی والعلم باعمارهم واصول الصناعات والفلاحة والحياكة والسياسة والحجامة.

ژباړه: او هرچې فرض کفايي علم دی نو داهر هغه علم دی چې ددنيا دکارونو په قوام کې ورته ضرورت لرو او ضرورت موورباندې رفع کيږي ، لکه طب ، حساب ، نحو ، صرف داسې نور ډير علوم دغه راز داثارو ،اخبارو ، رجالو او دهغوی په نومونو علم ، دصحابه کرامو دنومونو او صفتونو علم ، داحاديثو د رواتو او دهغوی په عدالت علم راوستل ، درواتو داحوالو او دقوي او ضعيف دتميز علم ، ددوی په عمرونو علم ، دغه راز دصنعتونو دقاعدو يا قوانينو علم ، ددهقانی علم ، داوبدلو علم ، دسياست علم او دوينې ايستلو علم .

شهيد منصور صاحب وروسته ليکي ( دفقهاء کرامو په دې تفصيل کې که هرڅوک تامل او فکر وکړي نو هرومرو به دا وپيژني چې داسلام دين داسلامي ثقافت او

ې مدنیت دخانګو او رشتو څخه دهرې څانګې او رشتې
تخصصینو موجودیت فرض ګڼلی ، په دې هم فقهاء
ریح کړې چې که چیرې مسلمان دستنې جوړولو ته اړ
ی او په مسلمانانو کې دستنې جوړونکی نه وي نو ټول
لمانان دفرضو پرېښودلو په ګناه کې شریک ګڼې.

دعلومو له ډلې څخه هر ګټور علم له کفایي فرضو څخه ده
تبحر په کې مستحب دی ، دقلب په معالجه کې تخصص کفایي
ض او تبحر په کې مستحب دی ، همدارنګه دپټرولو راایستلو
م او دهغوی لپاره دځمکې دطبقو پېژندلو ( جیولوژي ) او نفتو
ایستلو ، دآلاتو ترتیب ، تصفیه او نور چې یوازې دپټرولو
ایستلو او اماده کولو علم تراتیا پورې مختلفې برخې او
وونه لري چې دهرې برخې تخصص یې فرض کفایي دی ، دغه
که دطب ، زراعت په ټولو څانګو ، نوي صنعت او اتوم په برخه
او دصنعت ترهوایي او بحري ټولو برخو پورې په دې علومو
تخصص او زده کړه یې فرض کفایي ده )

له لوړ بحث څخه معلومه شوه ، چې نوي علوم چې
ساني پرمختګ او رفاه دپوړۍ زینې بلل کیږي لکه ،
ک ، بیولوژي ، کیمیا ، هندسه ، ریاضي ، کمپیوټر
ینس ، ځمکپوهنه ، اټوم پوهنه ، دانجینرۍ بیلابیلې
تې ، دطب بیلابیلې رشتې او ټول مشروع معاصر علوم
مسلمانان ورته په صنعت ، پرمختګ او له سیالانو
ه په سیالۍ کې اړتیا لري دکفایي فرضیت حیثیت لري
و که مسلمانان ورته اعتناء ونه کړي او زده یې نه کړي نو
لله تعالی په نزد به ورباندې ګناهکاروي.

ددې لپاره چې دغزې ، فلسطین ، چیچنیا ،
انستان او برما دمظلومیتونو غوندې له اضافه
کومیت څخه نجات پیدا کړو ، لازمه ده چې لومړی خپله
ټولنیزه ګناه درک کړو ، چې ددښمنانو په نسبت موږ دنویو
ومو زده کړې ته لږ توجه کړې ، له دې بعد باید هره هغه
ه وستایو ، چې داسلامي امت دساینسي پرمختګ لپاره
ږي ، ساینسي علومو ته نه یوازې په خپلو ښوونځیو او
پوهنتونونو کې وده ورکړو ، باید ددیني علومو په مدارسو
کې هم دنویو علومو ابتدائي کتابونو داخل کړو.

اخروي دنیا ( اخرت ) خو مو دخپل برحق دین له
برکته له دښمنانو ګټلې دی ، خو راځئ دا دنیا هم ترې
وګټو ، ځکه چې دا دنیا دارالاسباب او دارالوسائل دي نو
موږ کولای شو یوازې یې ددنیوي اسبابو دسیالۍ له مخې
ترې وګټو ، که مسلمانانو نوي صنعت ته وختي پام کړی
وای او دخپل نړیوال ځمکني او سمندري حریم دساتنې
لپاره یې قاره پیما توغندي ، الوتک وړونکې بیړۍ ،
اټومي اوبتلونه ، فضایي څارونکې سپوږمکۍ ، اټومي
توغندي او دتوغندي ضد ډال سیستمونه درلودلای
هیڅکله به دبریتانیا عیسویان په دې نه وای توانیدلي ،
چې زموږ مصر ، فلسطین ، جزیرة العرب ، او نورې
خاورې لاندې کړي هیڅکله به اروپایي یهودانو دا زړه نه
وای کړې چې له سمندرونو راووړي او زموږ په لومړنۍ
قبله باندې قبضه وکړي ، او زموږ په منځ کې په مقدسه
خاوره ترټولو ظالم هیواد جوړ کړي.

که موږ نوي صنعت او ساینس وختي زده کړی وای
نن سبا موږ کولای شوای چې یوازې دتیلو دصادراتو
دبندولو له امله هم امریکایي الوتکې له بمبار او
اورپایي کارخانې له صنعت څخه محرومې کړو ، خو نه
موږ نوي ساینس ته په یوه ضروري علم ویلو قائل نه یو
نو ځکه ترخپلو پښو لاندې تېل هم بهر نه شو رایستلای ،
او دژوند په هره برخه کې حتی دجاینماز او د ذکر دتسپو
ترصنعت پورې ترکافر چین او جاپانه تړلي یو ، نو ځکه
دشاعر داخبره راپورې ښه لګیږي چې

همدا مو حال دی دبل اور کې سکاره شوي یو موږ
له کوم ساعت چې له سیالۍ په کاله شوي یو موږ
دغه B دوه پنځوس چلیږي دخلیج په تیلو
لکه کبان خپلو غوړو کې پاخه شوي یو موږ
والی المشتکی وبه نستعین

# نن ـ نن فکري جنګ او د وخت پرمختللي وسایل

ابراهیم مومند

**شپږم:**

انټرنېټ او کمپیوټر نن ـ سبا د نننۍ فکري جنګ تر ټولو کامیابه او زیاته استعمالېدونکي وسیله ده، چې په ډېر کم وخت کې یې ډېر اوږد مزل وواهه. انټرنېټ او کمپیوټر نه یوازې دا چې د فکري جنګ وسیلې دي، بلکې د دې ترڅنګ د تبشیر او تنصیر دنده هم پرمخ بیایي. نن ـ سبا د یهودو او نصرانیانو، بلکې په مجموع کې د ګردو کفارو له خوا په انټرنېټ کې په زرګونو داسې وېبپاڼې فعالیت کوي، چې د اسلام او مسلمانانو خلاف ښه په خلاص مټ تبلیغات کوي. اسلام نړیوالو ته د ظلم، جبر او وحشت دین ورمعرفي کوي؟!! اسلام د بشري حقوقو د پایمالېدونکي دین په حیث نړیوالو غافلو انسانانو ته ورپېژني؛ خو څرنګه چې انټرنېټ او کمپیوټر که له یوې خوا د مسلمانانو سره د فکري جنګ مېدان ته راویستل شوي دی، له بلې خوا، چې دا د انټرنېټ او کمپیوټر په باره کې لږ و ډېره د خوښۍ خبره هم ده، په سلګونو اسلامي، دیني، دعوتي، جهادي، علمي او داسې نورې مفیدې وېبپاڼې هم د مسلمانانو لپاره په خپله لمن کې له ځانه سره لري.

د اسلام د دښمنانو له خوا د نننۍ فکري جنګ په ګردو وسایلو کې، چې د فکري جنګ په مېدان کې ډېر مؤثره تمامه شوې ده، انټرنېټ دی، ځکه چې له یوې خوا د فکر، عقیدې او د مسلمانانو د بې لارې کولو لپاره هر نوعه مواد له ځانه سره ساتي او له بلې خوا همدغو بدرنګو!! موادو ته هر عام او خاص مسلمان لاس رسی هم لري؛ نو همدا لامل دی، چې د اسلام او مسلمانانو د دین، عقیدې او فکر دښمنانان د نننۍ فکري جنګ د دغې وسیلې قیمتونه ورځ نه بلې ته په حیرانوونکې توګه کموي او د عامولو ساحه یې پراخوي!!

د مثال په توګه ډېر وړاندې به سره نه ځو، د یوویشتمې پېړۍ په شروع کې، چې کله په ۲۰۰۱ میلادي کال کې صلیبي یرغلګرو په افغانستان باندې تېری وکړ؛ نو د یوه (PENTIUM I) کمپیوټر قیمت له یو لک (۱۰۰۰۰۰) کلدارو څخه زیات و، چې هر چا یې د اخیستلو توان نه لاره؛ خو اوس چې نهه ـ لس کاله تېرېږي او د اسلام او مسلمانانو دښمنانو د نننۍ فکري جنګ مېدان ته د خپلې دغې راویستل شوې وسیلې مأثریت ولیده؛ نو د (PENTIUM I) څخه د ښه سرعت، د ښه کیفیت، د ښه نوعیت او په پرمختللې ټکنالوژۍ سنبال کمپیوټر (PENTIUM IV) نن ـ سبا په بازار کې د پنځه زره (۵۰۰۰) څخه نیولې تر لس زره (۱۰۰۰۰) کلدارو پورې په آسانۍ سره پیدا کېږي!!

د فکري جنګ د پورته وسایلو سره د انټرنېټ او کمپیوټر مثبت توپیر هم همدومره دی، چې داسې یوه راډیویي شبکه او یا ټلوېزیوني شبکه، چې هغه په واقعي توګه د اسلام او واقعي مسلمانانو په باره کې خپرونې وکړي او د واقعي اسلام او مسلمانانو څخه دفاع وکړي، جوړول یې آسانه کار نه دی، ځکه لومړی، خو یې مصرف پوره کول ډېر ستونزمن کار دی او که مصرف یې په خیراتونو او چاندو باندې پوره کړای شي؛ نو بیا دې ورته د وخت فرعونیان او فرعوني طاقتونه نه پرېږدي؛ خو د یوې اسلامي، دعوتي او جهادي وېبپاڼې جوړول، چې د اسلام د دښمنانو له خوا د شروع شوي فکري جنګ په مقابل کې، زما په آند د اسلام د هر خواخوږي او د کفر سره د جنګېدونکي هر بااحساسه مسلمان له وسې پوره کېدونکی کار دی، چې د ننني فکري جنګ په مقابل کې ډېر مأثره تمامېدای شي.

لنډه دا چې انټرنېټ او کمپیوټر د ننني فکري جنګ داسې وسیلې دي، چې په ظاهره مسلمانانو ته نوې او معاصره ټکنالوژي ښکاري، چې نن ـ سبا یې د ژوند په هره برخه کې استعمال هم عام شوی دی؛ خو په حقیقت کې د اسلام دښمنانو دغه وسیله د دې لپاره نه ده جوړه کړې، چې مسلمانان یې د ځان او اسلام د فایدې لپاره وکاروي، بلکې د فکري جنګ د نورو وسایلو په څېر یې دا هم د مسلمانانو د ذهنونو د ښکار کولو او د خپلو باطلو عقیدو د پیچکاري کولو لپاره جوړه کړې ده او د فکري جنګ مېدان ته یې راویستلې ده. البته زما په آند زده کول یې د هر مسلمان لپاره ضروري دي، ځکه چې مسلمانان کولای شي، چې همدغه د کفارو له خوا د فکري جنګ جوړه شوې وسیله برعکس د خپل دین، عقیدې او فکر څخه په دفاع کې او د خپلو عقیدوي دښمنانو په مقابل کې استعمال کړي.

همدغه د انټرنېټ او کپیوټر مثبت اړخ دی، چې د راډیو، ټلوېزیون، ډېش، کېبل سره د مسلمان لپاره مقابله کول ستونزمن کار دی، چې د نشر او خپرېدو مخه یې ونیسي؛ خو لکه څنګه چې وویل شول، د انټرنېټ او کمپیوټر له لارې مسلمانان هم کولی شي د خپلو عقیدوي او فکري دښمنانو په مقابل کې د فکري جنګ په مېدان کې وجنګېږي او همدغه د خپل دښمن جوړ کړي وسایل، چې په لاس کې یې لري، په خپله نفع په کار واچوي او د عسکري او نظامي مېدانونو په څېر د فکري جنګ په مېدان کې هم د دوی په خپلو جوړو کړو وسایلو ورته ماتې او شکست ورکړي.

**اووم**:

د ننني فکري جنګ تر ټولو وروستۍ وسیله، چې د اسلام او مسلمانانو دښمنانو د فکري جنګ مېدان ته راویستلې ده، هغه مبایل ټېلفون دی. مبایل ټېلفون، چې د دې هم په دې وروستیو کې استعمال ډېر عام شوی دی او د هر ځوان ـ زوړ، ښځې ـ نر، شتمن ـ غریب، باسواده ـ بې سواده، ښاري ـ اطرافي او داسې نورو سره یې ښه نه ښه ډول موجود دی او استعمالوي یې، د ننني فکري جنګ ډېره کامیابه او پرمختللې وسیله ده.

د ننني فکري جنګ دغه وسیله (موبایل ټېلفون) د راډیو، ټلوېزیون، ډېش، کېبل، انټرنېټ او کمپیوټر ګردو څخه خطرناک دی او د ننني فکري جنګ په مېدان کې له پورته ګردو ذکر شوو وسایلو څخه ډېر په کامیابۍ سره پرمخ روان دی او خپله د فعالیت ساحه یې د ښارونو، کلو، بانډو، کورونو، بلکې تر کوټو او فرد ـ فرد پورې پراخه کړې ده، چې په غیر شعوري ډول د مسلمانانو د زړونو او ذهنونو په خالي کولو باندې ډېر په چالاکۍ او مکارت سره مصروف دی!!

مبایل ټېلفون د ننني فکري جنګ له وسایلو څخه یوه داسې خطرناکه وسیله ده، چې په خپل دغه وړوکي ځان په یوه وخت کې راډیو هم ده، ټلوېزیون هم دی، سي. ډي. پلېر هم دی، کېبل هم دی، ډېش هم دی، کمپیوټر هم دی، د عکاسۍ

او فلمبرداري، کمره هم ده او آن، چې انټرنېټ هم دی!! همدارنګه دغه تر ټولو خطرناکه وسیله دومره آرزانه، کم قیمته او عامه ده، چې هر څوک یې د ښه نه ښه نوعې د رانیولو او ساتلو وس او توان لري. د بېلګې په توګه نن ـ سبا د یوه چینایي موبایل، د میموري کارډ، د عکاسۍ او ویډیو کمرې، بلوټوت او د پرمختللې ټکنالوژۍ په داسې نورو وسایلو سمبال موبایل له دوه زره (۲۰۰۰) کلدارو څخه نیولې تر درې زره (۳۰۰۰) کلدارو پورې په بازار کې بې له کومې سردردۍ او تکلیفه پیدا کېږي!!

موبایل ټېلفون د نننې فکري جنګ په مېدان کې دومره پرمختللې وسیله ده، چې آن د الله تبارک و تعالی په کور کې هم مسلمانان د خپل رب عبادت او بندګۍ ته په آرام نه پرېږدي او د الله سبحانهُ و تعالی د کورونو په داخل کې هم د نننې فکري جنګ دغه تر ټولو کوچنۍ؛ خو خطرناکه وسیله خپل کار او فعالیت کوي او په جوماتونو کې د لمانځه په وخت کې هم د مسلمانانو د ذهنونو او د فکرونو د ګډوډولو لپاره وخت ناوخت ډول و ډمبکې، ډنګوي او نارې ـ سورې وهي، چې د الله ﷻ د بندګانو د خپل رب څخه یې د توجه اړولو دا ناآشنا او حېرانوونکې کار او فعالیت د ډېرې حېرانتیا او خواشینۍ وړ دی!!

همدا لامل دی، چې د اسلام او مسلمانانو دښمنانو د کمپیوټر په څېر د نننې فکري جنګ دغه وسیله هم دومره آرزانه او عامه کړې ده، چې هر څوک یې د اخیستلو او ساتلو وسه او توان لري. دا د دې لپاره، چې د نننې فکري جنګ دې وسیلې هم د نننې فکري جنګ په مېدان کې ښه نتیجه ورکړېده؛ نو ځکه خو یې د ښه نه ښه موبایل قیمت تر دوه زره (۲۰۰۰) کلدارو پورې راټیټ کړی دی. له نن څخه نهه ـ لس کاله وړاندې د یوه عادي او ساده موبایل ټېلفون، چې د نن په څېر د پرمختللې ټکنالوژۍ څخه به هم برخمند نه و، قیمت یې پنځلس ـ شل زره کلدارو ته رسېده، چې د دې علاوه به یې په لس ـ پنځلس زره کلدارې یوازې سیمکارټ جلا اخیستل کېده؛ خو نن ـ سبا د اسلام او مسلمانانو دښمنانو د فکري جنګ دغه وسیله دومره آرزانه او عامه کړېده، چې سیمکارټ خو یې بالکل وېړیا کړی دی، چې د ښه نه ښه موبایل ټېلفون قیمت یې هم له دوه زره کلدارو څخه په بازار کې راټیټ کړی دی.

نن ـ سبا اکثره مسلمانان په ځانګړې توګه ځوان نسل موبایل ټېلفونونه یوازې، د فحاشو او بې لارې کوونکو پښتو، هندي او نورو شرقي او غربي سندرو، د هالي ووډ او بالي ووډ د فلمونو ترڅنګ د نیمه او پوره بربنډو فلمونو او د داسې نورو ګمراه کوونکو او ذهن او فکر خرابوونکو موادو د استعمالولو لپاره کاروي، چې د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو د نننې فکري جنګ د دغې پرمختللې وسیلې د جوړولو څخه عمده موخه او هدف هم همدا دی، د کوم لپاره یې چې نن ـ سبا زمونږ زیاتره مسلمانان کاروي!!

د نننې فکري جنګ دغه وسیله هم د کمپیوټر او انټرنېټ په څېر د پورته یادو منفي اړخونو سره سره د مسلمانانو لپاره ځینې مثبت اړخونه هم لري، هغه دا چې د دې وسیلې واګې هم د کمپیوټر او انټرنېټ په څېر، بلکې له کمپیوټر او انټرنېټ څخه هم لازیاتې په خپله د مسلمانانو په لاس کې دي؛ نو کولای شي، چې د خپلو دښمنانو د هیلو او توقعاتو برخلاف یې د خپل دین، عقیدې، دنیا او آخرت په ګټه استعمال کړي.

**اتم:**

د نننې فکري جنګ د پورته یادو شوو پرمختللو نشراتي وسایلو څخه وروسته، یوه بله وسیله، چې د ټېپ ریکارډر ځای ناستی او بدیل به ورته ووایو، هغه په دې معنا، چې نن ـ سبا د ټایپ استعمال ورځ نه بلې ته کمېږي او ځای یې د نننې فکري جنګ همدغه پرمختللې وسیله (*MP3* Player) نیسي.

د اسلام او مسلمانانو دښمنانو دغه وسیله په دې خاطر د نننۍ فکري جنګ مېدان ته راوښتلې، چې له یوې خوا په خپله د ټیپ قیمت زیات دی او له بلې خوا روزانه د نوو کېسټو اخیستل، چې معمول پکې لس ـ دولس سندرې وي، د ډېر مصرف باعث کېږي، چې هر څوک یې د رانیولو توان نه لري. همدارنګه د دې ترڅنګ د ټایپ حجم (سایز) دومره غټ دی، چې ګرځول یې ستوزمن کار دی؛ نو غربیانو د دغه مشکل په نظر کې نیولو او حل کولو لپاره، چې د فکري جنګ دغه وسیله هم د مسلمانانو په منځ کې لا نوره عامه او په یوه بأثیر اچوونکي وسیله یې بدله کړي؛ نو په همدې موخه یې (MP3 Player) په داسې ناآشنا قیمت او کیفیت بازار ته راووېسته، چې هر څوک یې د رانیولو او ساتلو، ترڅنګ په هر ځای کې په آسانۍ سره د ګرځولو توان هم لري!!

د نننۍ فکري جنګ د دغې وسیلې حجم (جوړښت) د قیمت په څېر هم ډېر کم دی، چې د تیلو (ګوګرد) د قوتي څخه هم کوچنۍ ده!! خو کار او فعالیت یې بیا دومره زیات او خطرناک دی، چې په یوه وخت کې د ټایپ د سلو (۱۰۰) څه چې د زرو (۱۰۰۰) کېسټو څخه په زیاته اندازه مواد له ځانه سره د




استعمالوونکي لپاره ساتي!!

نن ـ سبا په بازار کې (MP3 Player) په دوه ډوله پیدا کېږي. یو ډول یې داسې دی، چې په خپله (MP3 Player) په داخل کې په مختلفو اندازو حافظې (Space) لري، چې د یوه مخصوص کېبل له لارې د کمپیوټر په واسطه په کې مواد ځای پر ځای کېږي او بیا د غوږیو (ګوشکیو) ترڅنګ همداسې هم اورېدل کېږي، چې دغه ډول یې تقریباً اوس مخ په ورکېدو دی او ځای یې په نوې ټکنالوژۍ سنبال یو بل ډول نیونکی دی.

د (MP3 Player) دغه نوې ډول، چې اوس ـ اوس مارکېټ ته راغلی دی، میموري کارډ (Memory Card) خوري. د دغې ډول جوړښت یې داسې دی، چې په خپله (MP3 Player) د یوه تش ډبې حیثیت لري او تر هغه وخته پورې کار نه کوي، تر څو چې په کې د موادو څخه ډک میموري کارډ وانه چول شي.

البته په میموري کارډ کې مواد د چېپ ریډر (Chip/Card Reader) له لارې د کمپیوټر په واسطه ځای پر ځای کېږي. د دغه ډول مثال یې داسې دی، لکه د وي.سي.آر.، سي.ډي./ډي.وي.ډي. پلیر او ټیپ، چې په خپله تر هغه څه نه غږوي، ترڅو چې په کې کېسټ وانه چول شي.

همدغه دویم ډول یې، چې نوې ټکنالوژي ده؛ نن ـ سبا ډېر عام دی، آن چې په اکثره موبایل ټېلفونونو کې پیدا کېږي او د سندرو او نورو مذخرفو موادو د ډکولو څخه وروسته یې ځوانان، چې په غوږونو کې یې غوږۍ ایښې وي تمامه ورځ اوري!!



د دې ترڅنګ د همدغه دویم ډول (MP3 Player) یو ډول یې داسې دی، چې مخصوص د موټر لپاره جوړ شوی دی. دغه ډول (MP3 Player) د موټر د لېټر په ځای کې، کوم چې په سویچ بورډ

(Switch Board) کې د سګرټ د بلولو لپاره ځای پر ځای شوی دی، لګول کېږي او بیا کار کوي.

پخوا به په موټرو کې د یوه ډرېور سره دوه ـ درې کېښتې وې، چې یو ساعت ـ نیم به یې واورېدې او بیا به یې ټيپ ګل کړ؛ خو اوس چې دغه شیطاني وسیله راوتلې ده، په یوه وخت کې دومره شیطاني او ذهن و فکر تباه کوونکي مواد (سندرې) په کې ځای پر ځای کېږي، چې د تورخم څخه نیولې، آن تر هراته پورې که په مسلسله توګه واورېدل شي؛ نو هم به خلاص نه شي؟!

لنډه دا چې ګردو مسلمانانو ته په ځانګړې توګه هغو کسانو ته، چې د الله تبارک و تعالی د دغه حکم لاندې: ((وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ)) (الانفال/ ۳۹) ژباړه: ((ای مؤمنانو! له دې کافرانو سره تر هغه پورې وجنګېږئ، چې فتنه پاتې نه شي او ټول دین د الله ﷻ لپاره شي)) جهاد کوي او د ځمکې پر مخ د واقعي اسلامي خلافت د راوستلو لپاره د هېڅ رنګه قربانۍ څخه دریغ نه کوي، د دوی مسؤلینو او مشرانو ته په کار ده، که څه هم تر خپلې وسې یې دا کار کړی هم دی، لکه څنګه چې په لاندې کرښو کې ورڅخه یادونه هم شوې ده؛ خو د لا نور زیاتوالي او پراخوالي په هیله دوی ته دا وایو، چې د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو له خوا د دغې جوړې شوې وسیلې څخه هم باید مسلمانان د ځان په ګټه کار واخلي، د بېلګې په توګه د دې پر ځای چې مسلمانان پر دغه وسیله باندې اسلام ټکره او ذهن و فکر خرابوونکي مواد استعمال کړي، کولای شي د قرآن کریم تلاوت، ترجمه، تفسیر، حدیث، د علماؤوویناوې، تقریرونه، درسونه او داسې نور په لسګونو دنیاوي او اخروي ګټور مواد پرې استعمال کړي، چې په لومړي سر کې د دغو موادو برابرول د پورته یاد شوي نظام د مسؤلینو کار دی، ترڅو د نظامي او عسکري ډګرونو په څېر د فکري جنګ په ډګر کې هم د خپل دین، مذهب، عقیدې او فکر دښمنان په دې توګه مایوسه کړي او له ماتې سره یې مخ کړي، چې د همدوی په لاس د مسلمانانو د ذهنونو او د فکر د خرابولو لپاره جوړ شوي وسایل مسلمانان د خپل دین، عقیدې او فکر په نفع او خیر باندې کاروي.

په دې ځای کې یوه یادونه، چې پورته ورته اشاره هم وشوه، ډېره ضروري او اړینه بولم، هغه دا چې د افغانستان اسلامي امارت د فرهنګي چارو کمیسیون په ډېر سخت، تنګ او د مشکلاتو څخه په ډکو شرایطو کې د اسلام او مسلمانانو د ازلي دښمنانو په ځانګړې توګه د صلیبیانو سره د ننني فکري جنګ په هر ډګر کې ډېره په زړه پورې مقابله کړې ده او لا یې کوي، بلکې و یې هم کړي!!، ځکه چې ډېره ګټوره ده!! د بېلګې په توګه د دښمن د پوچو تبلیغاتو په مقابل کې د انټرنېټ له لارې په بېلا بېلو ژبو د اسلامي، عقیدوي او جهادي وېبپاڼو چلول، د پښتو بې لارې کوونکو ډرامو او ټيلي فلمونو سره سره د هالي ووډ او بالي ووډ د فلمونو په مقابل کې د خپل ولس لپاره د مستندو او په زړه پورې جهادي فلمونو برابرول او راویستل. د غربي او لاسپوڅو داخلي میډیاګانو له لارې د جهاد او مجاهدینو د بدناموونکو آوازو په مقابل کې په پرېمانه آندازه د جهادي قیادتونو او مجاهدو علماؤو د آیات او حدیثو په رڼا کې د اثرګذارو او استدلاله ډکو ویناوو او تقریرونو عام منظر ته راویستل او نشرول. د غربي او داخلي لاسپوڅو چاپي رسنیو د بېلګې په توګه د اخبار، مجلو او جریدو د پوچو او ناسمو تبلیغاتو په مقابل کې په پراخه آندازه د خپل ولس د ذهن او فکر د بیدارولو او جوړولو لپاره په ښه صحافت د میاشتنیو چاپېدونکو مجلو چلول. د مذخرفو پښتو، هندي، شرقي او غربي سندرو د مخې د ډب کولو او د خپل مسلمان ولس لپاره د ذهن او فکر خرابوونکو موادو په مقابل کې د بدیل په توګه د نعتونو، ترانو او په ترنم کې د ویل شوو نورو په زړه پورې نظمونو او شعرونو خپلې ټولنې ته وړاندې کول، د بې حسابه ستاینې او تشویق وړ کار دی، چې باید لا نور پراخوالی ورکړل شي، ځکه چې په اوسنیو شرایطو کې د

غرب له لوري د فکري جنګ مېدان ته د پورته يادو راوېستل شوو وسايلو مخه نيول ډېر ستونزمن کار دی؛ خو په يوه صورت کې کېدای شي، چې زمونږ بااحساسه مسلمانان ورته اسلامي، عقيدوي، فکري مفيد او ګټور مواد برابر کړي او بيا دغه مواد عام کړای شي، ترڅو د تش په نامه مسلمانانو او غير مسلمانانو له خوا د جوړو شوو غيرشرعي موادو (فلمونو، ډرامو، سندرو او داسې نورو) د استعمالولو پر ځای مسلمانان همدغه شرعي مواد، لومړی خو به يې انشاء الله په خپله خوښه استعمالوي او که په خپله خوښه يې چا استعمالولو ته غاړه کېنښوده، نو بيا پرې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر له لارې بايد جبراً استعمال کړای شي، ځکه چې دا د يوه اسلامي نظام مسؤوليت دی.

د افغانستان د اسلامي امارت د فرهنګي چارو د کمېسون له لوري د فکري ويښتابه لپاره لږ و ډېر جوړ شوي فرهنګي مواد، چې د اطرافي سيمو ترڅنګ په ښارياتو کې يې هم اوس زمونږ زاړه او ځوانان ډېر په شوق او مينې سره ګوري او اوري، د همدغو (د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو له خوا د فکري جنګ مېدان ته د راويستل شوو وسايلو په واسطه ترې) د خپلې نفعې لپاره استفاده کوي، چې دا د بې حسابه خوښۍ او خوشحالۍ ځای دی.

د افغانستان د اسلامي امارت له لوري د نظامي جنګ ترڅنګ روان فکري جنګ هم داخلي لاسپوڅي او هم بهرني يرغلګر دومره ورخطا کړي دي، چې يو يې وايي: ((د افغانستان د سولې او ثبات دښمنان د عملي او ګرم جنګ ترڅنګ له تبليغاتي جګړې هم کار اخلي او ورته زياته توجه کوي او اکثراً ډېر دروغ تبليغات په ترانو کې ځايوي او د خلکو د احساساتو د اړولو لپاره يې تکثيروي، دغه ترانې دروغ دي او حقيقت نه لري!؟))(لطف الله مشعل، د حامد کرزي د ګوډاګۍ ادارې د امنيت وياند)

همدارنګه د دې ترڅنګ د (HURST) په نامه يوې برتانوې خپروونکې ادارې د دوه سوه (۲۰۰) هغو بېلا بېلو شعرونو، چې طالبانو د صليبي يرغلګرو سره د روان يوولس کلن جهاد په دوران کې په ترنمي آنداز کې د ويلو او ثبتولو ترڅنګ په مختلفو وېبپاڼو، مجلو او جريدو کې هم چاپ کړي دي، انګليسي ژبې ته د ژباړلو او په کتابي بڼه د چاپولو تابيا کړې ده. کتاب چاپوونکی وايي، مونږ په دې کار سره ځان ته دا جوتول غواړو، چې طالبان په خپلو فکرونو او عقلونو کې څومره عاطفي خلک دي او د دوی شعرونه د مينې، کورنۍ، د يرغلګرو سره د مقاومت، استعمار او د بهرنيانو له خوا د شپې پر عملياتو او ورته موضوعګانو باندې څومره راڅرخي.

سربېره پر دی، د نننۍ فکري جنګ له پورته برېښنايي ډله ييزو او انفرادي نشراتي وسايلو څخه وروسته چاپي رسنۍ هم د يادونې وړ دي. د بېلګې په توګه اخبار، مجله، جريده او داسې نور هم د فکري جنګ په مېدان کې د مسلمانانو پر خلاف د خپل توان مطابق ښه په خلاص مټ کار کوي، چې د ليکنې د اوږدېدو له امله پرې د بحث او خبرو کولو څخه تېرېږو؛ خو څرګنده دې وي، چې چاپي رسنۍ هم هو ـ بهو د برېښنايي رسنيو، يعنې راډيو، ټلوېزيون، کېبل او انټرنېټ غوندې په خپلو ساحو کې په دومره توپير، چې برېښنايي رسنۍ ژوندۍ خپرونې کوي او چاپي رسنۍ، په چاپي بڼه داسې بې لارې کوونکې او ذهن و فکر خرابوونکې ليکنې، انځورونه او داسې نور مواد ډېر په مکارت او چالاکۍ سره نشروي، چې نن ـ سبا د اکثرو اخبارونو او مجلو څخه د انځوريز خبر او خبرونو په نامه د نيمه بربنډو عکسونو البمونه جوړ شوي دي، چې د سينما، ټي. وي، شوبز (Showbiz)، سپورټس او داسې نورو نومونو لاندې بېلا بېل غير اخلاقي انځورونه په مختلفو ډايجستونو، مجلو او اخبارونو کې روزانه چاپېږي او بيا بازارونو ته د تجارت په بهانه راوېستل کېږي!!

# د ادب سنګر او سنګریان



## ښاغلی ټرون درپیږتو

راټولوونکی : ع ، حکمت

پنځه شپږ کاله وړاندې ، هغه مهال چې په هېواد راغلې یرغلیزه ترورېزمۍ په اوج او موج کې وه ، او وطن او اولس مو یو عجیبې خاموشۍ ترخپلو زمولوونکو منګولو لاندې ژیندۍ کړې وو ، هغه مهال چې د یوه شاعر په خبره :

بې مینې وخت په مینه د اسې قدغن ولګاوو

مجنون سنګسار شي چې بې تش په خوله وې لام اخیستی

په دې امتحاني شیبو کې اګر که د راغلي غلیم په وړاندې د مسلح جهاد سنګرونه تاوده وو ، خو د فرعون صفته غلیم په وړاندې په مخامخ او مباشر ډول لاهم چا د حق غږ او الجهاد اواز د پورته کولو جرأت نه وو کړی ، دا هغه مهال وو چې زموږ د تېر جهاد د مهال یو شمیر ریاکار مشران له خپل ماضي څخه د تېښتې او انکار په هڅو بوخت وو ، چا ږیرې لنډولې ، او چا د نکټايي په غاړه کولو سره کوښښ کاوو ، چې د غربي یرغلګرو په رنګ له ځان رنګولو سره ددې وړ شي چې له موسم او حالاتو سره سم وچلیږي.

د صلیبي یرغلګر اختناق په همدې امتحاني شیبو کې یوه ورځ د ننګرهار د نارنج ګل په مشاعره کې ، د جهاد او هجرت د لارې یو تنکی زلمی راپاڅېد ، بې له دې چې د حالاتو نزاکت ، خطرناک ماحول ، او د زندان او تعذیب ویره په نظر کې وساتي په پوره بېباکۍ یې د یرغلګرو حاکم دهشت او وحشت مسخره کړ ، او د حاضرینو په وړاندې یې د حالاتو له مخې تورې تبلیغاتي پردې پورته کړې.

دې زلمي په غریو نیولي غږ چې بیا بیا د مینه والو په هیاهوی او د تکبیر په زمزمو کې ورکېده وویل.

دا ګونګوسې مو له پښوا اوریږې  
چې زموږ واک به بیا جلاد نیسي

څوک به پښوا د مرده باد کې اوسي  
څوک به طرف د زنده باد نیسي

د تاریخ سپینې او زرینې پاڼې  
د ځینو ځینو خلکو یاد نیسي

دا سپین لباس کې دلستونې ماران  
را نه کابل نیسي بغداد نیسي



=====

تا دصليب نښان په توره والی
په دغه توره مسلمان وژنې

يو افغان غيره کې نيږدې کړې ځانته
په هغه بيرته بل افغان وژنې

خپل انجيل شاپورې ترلی ګرځې
خو لاروي دپاک قرآن وژنې

زما ازار دې ليونی کړه اشنا
چې په سوکانو باندې ځان وژنې

دا زلمی سميع الله تړون وو ، چې په لومړي ځل يې ديرغلګر اختناق طلسم مات کړ، او خپلو نورو ملګرو او همسنګرو ته يې دجهادي ادب په لاره يو نوی منډ تېر کړ.

تړون له هماغه ورځې وروسته کوم عادي کوړنی شاعر پاته نه شو ، بلکې دباطل په مخکې دحق داواز دپورته کولو ( افضل جهاد ) په سمبول بدل شو ، ترده وروسته دنوراجان بهير ، علي اکبر پروانه ، چينار ټکوراو مطيع الله تراب غوندې ځينو نورو شاعرانو هم دالاره تعقيب کړه ، او د افغاني ادب دمشاعرو په لړۍ کې يو ځانګړی ادبي سبک رامنځته کړ.

سره له دې چې دپښتو ادب ځينو ادعائي او تنخوا خورو سرخپلانو ددوی دا ډول سپين ګويه شاعري دخپل عادت سره سم په ( شعار ) تورنه کړه ، خو هوښياران ښه پوهيږي چې هغه څوک وو چې په دې امتحاني پړاو کې يې دخپل هنر حق په سمه توګه ادا کړ ، او دعام مظلوم او اشغال شوي اولس درد او کړيکې يې شاعرانه کړې.

که شعر او ادب داولس دهيلو او ارزوګانو دانعکاس هنداره او شاعر د اولس ژبه وبولو ، نو په يقين سره ويلی شو ، چې هغه مهال همدا شاعران ( تړون او ملګري يې ) وو ، چې دافغاني ادب حق يې ادا کړ ، ځکه په داسې حال کې چې اولس دنيمي نړۍ تريرغل لاندې وي ، هره ورځ په ولس بمونه او بارود اوري ، افغانې ميندې هره ورځ دخپلو بچو مرګونه ګالي ، دوطن سپين روبي او ځوانان په زندانونو کې پراته وي ، او نور يو عالم مصائب او امتحانات په وطن باندې رانازل شوي وي ، که بيا هم دهمدې ټولنې شاعر دليلا شونډې ستايي ، دګودر او مازديګر په تصوراتو کې غرق وي ، او په خيال کې يوازې خالونه او پيکي ترسيموي ، نو دا بې له شکه داسې مثال لري لکه څوک چې د مړي سرته ولاړ دپراټو خيالونه وهي.

فرق نه کوي چې دتړون انقلابي شاعري په دوديزو ادبي ناستو کې په کوم کاڼي تلل کيږي ، خو هغه عقيدت چې تړون دخپل حق ګويه شاعرۍ په برکت په خپل اولس کې ترلاسه کړی دی ، شايد دادب نورو ادعائي دعوه دارانو دهغه سلمه حصه هم نه وي موندلی.

موږ که داولس ديوه ځوان ګرځنده مبايل ګورو نو په هغه کې به دښاغلي تړون دويل شويو اشعارو آډيو او ويډيو کليپونه وي ، تړون ته اولس ديوه ملي او مجاهد شاعر په سترګه ګوري ، خو هغوی چې دتړون شاعري ( شعار ) بولي ، د اولس دمينې او عقيدت په ايريا کې يې پل په ايرو هم نه ښکاري ، او يوازې ترخپل منځ ( تو مرا ملا بګو مه تورا حاجي ) په دود يو بل لمانځي او لقبونه او ميډالونه سره اهدا کوي.

ښاغلي تړون په تيرو څو کلونو کې په پوره متانت خپله جهادي شاعرانه لاره پاللې ده ، او په دې توګه يې خپل ورلغاړې مسؤليت ادا کړی دی ، که نو موړی لا هم خپلې دا ځانګړې شاعرانه سبک ته ادامه ورکړي نو بې له شکه چې زموږ دادب ديوه رښتيني ، مبارز او متعهد شاعر په توګه به دادب په زرين اسمان دځلانده ستوري ځای خپل کړي.

**تړون ځان داسې راپيژني**



نوم می سمیع الله تخلص می تړون د پلار نوم می حاجی مکرم خان او د نیکه نوم می محبوب دی د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ د کرمول د کلی او سیدونکی یم په ۱۳۵۹ هجری لمریز کال زیږیدلی یم لومړی زده کړی می د هجرت پرمهال د باجوړ په پنډغالو کی تر سره کړی دی منځنۍ زده کړی می د کونړ په عمرا خان لیسه کی تر سره کړی او لوړی زده کړی می د ننګرهار پوهنتون په حقوقو او سیاسی علومو پوهنځی کی بشپړی کړی دی همدا رنګه می له ۱۳۷۴ هجری لمریز کال راهیسی په شعر او شاعرۍ لاس پوری کړی چی تر اوسه می دری عنوانه کتابونه (تاته دی درپاتی وی ، زه دی نور نوم په ژبه نه اخلمه او د بلا لاس ) چاپ کړی له ۱۳۸۰ کال راهیسی می د خوځښت په نوم یوه اسلامی او سیاسی مجله خپروله چی تر ۱۲ ګڼو چاپ او وروسته د یو لړ ستونزو له امله په ټپه ودریده د دی تر څنګ می بیلا بیلی دندی هم تر سره کړی خو دا مهال چی له حالاتو می زړه ستړی دی بس په کور ناست یم او یوازی د کونړ د سیند څپو ته شاعري کړم.

## دښاغلي تړون د کلام څو نمونې

### غـــــزل

زه چې بې ژوندی کړمه نو ما الله ته وژړل
پورته هغه خلک شول چې چا الله ته وژړل

اوس چې مورته غږکوم نوغږ په بسم الله کوم
ما له اول سر په بسم الله الله ته وژړل

سره وه تکه سره وه په سرووینو لمبېدلې
ځکه په سرو وینو کربلا الله ته وژړل

مونږ چې رقیب واخیستو په مخه بېلولو یې
مونږ په چغو چغو واوېلا الله ته وژړل

بیا به د صلیب په ککرۍ میخونه ټکوهو
بیا زمونږ په کلي کې ملا الله ته وژړل

نن به خامخا رقیبه مور درباندې بوره شي
نن دشهید مور په شین سبا الله ته وژړل

بیا دې لېونۍ مینه تړونه لېونۍ شوله
بیا دې غلي غلي په خندا الله ته وژړل

### ځوانان له کوره وتي

یرغل راوړی دی اغیار ځوانان له کوره وتي
زمونږ د کلي نه د کار ځوانان له کوره وتي

اختره څه چرته وزګاره سیمه ولټوه
اوس درته مونږ نه یو وزګار ځوانان له کوره وتي

زمونږ د چم په پسرلو کې مزه پاتې نه ده
لکه ننبتر لکه چنار ځوانان له کوره وتي

سپینه ماښې به دې په تورو لوګو توره کاندې
یو ځل به بیا درکړي ګوزار ځوانان له کوره وتي

ستا د بې شمېره صلیبي لښکرو ملا ماتوي
دلته ابله یو څو په شمار ځوانان له کوره وتي

د فلسطین د بچو اوښکې نورې نه شي لیدی
دا یوبې په انتظار ځوانان له کوره وتي

بس دا تړون ساده سړی دی چې په کور کې ناست دی
په دې وطن کې خو هوښیار ځوانان له کوره وتي

# "بجلی گهر مُلا"

عابد

هغه غږ هم نور د تل لپاره چپ شو چې په اورېدو به د هر سړي زړه ته ور کوز ؤ، داسې دروند او اغېزناک غږ چې رجليت او نارينتوب ترې له ورايه ځرګند ؤ.

داسلامي دعوت په لار کې چې هر لور ته نظر وشي هيڅ داسې غږ اوحنجره څوک نشي په ګوته کولای چې دده دغږ مثال اوبديل يې وبولي، هغه څوک يادوم چې دنوم په اخيستو يې هم هيڅ دنه پېژندنې اظهار نه کاوه ؛ مولانا بجلی ګهر رحمه الله...

ځکه يې بې بديله او بې مثاله بولم چې ددعوت په لار کې يې يوه بېله ځانګړ تياوه ، داسې چې دټولنې دهرې طبقې هر فرد ته يې غږ رسيده ، که په يوه دښته اوصحرا کې به دلارې ډرېور په تنهايي کې سفر کاوه دده غږ اودعوت يې په زړه پورې ملګری و چې دزړه له کومې به يې اورېده ، که په مجموعي ډول به مسافر په بس کې په سفر وو دسفر ستړيا يې دهغه په زړه را ښکونکې وينا له منځه تله ، هغه بدمعاش اوياغي چې دهيچا تر اثر لاندې به نشو راتلای ، چرسي، بنګي ،هر اهل کسب دغه راز ډاکټر ، انجينر ، محصل، په سياست کې ښکېل خلک اودهر راز نظريې اوپه خپله تګلاره کلک ولاړ خلک به چې وو دمولانا بجلی ګهر دوينا له اغېزه " که يې غوښتل يا يې نه غوښتل " بې برخې نشو پاته کېدلی اودفکر اړخ به يې تر ډېره وربدلاوه.

دعوت اوچيغه يې هيڅکله ديوه ګوند او تنظيم تر کړنو اوتګلارو محدوده نه وه ، بلکې په ټولنه کې دهر ډول بې لارېو مخنيوی اوداسلامي نظام پلې کېدل يې داعيه وه.

له اسلامي ارزښتونو ننګه يې يوه بله ځانګړ تياوه چې په پوره زړور تيا يې دفاع ترې کوله ، تر ټولو په زړه پورې دا چې په ټولنه کې يې هرچاته دهغه نقيصه اونيمګړ تيا په ډېره زړور تيا ور په ګوته کوله اودهيچا پروايې هم نه لرله ، خو په عين حال کې يې له ټولنې سره هيڅ فاصله پيدا نشوه ، ټولو ته نږدې يو اجتماعي ملا ؤ.

دورځنې ژوند داړ تياوو دپوره کولو لپاره يې ملايي وسيله نه کړه اوتر هغو چې صحت ور سره ياري کوله له درس او تدريس سره سره يې په خپل کمال اوحکمت ددو کانداری اوسوداګرۍ له لارې خپلې اړ تياوې پوره کولې چې په دې توګه يې په ژوند کې يو بل درس هم ډېر ونورو ته ور کړ ، نه په سوداګرۍ او کاروبار دومره بوخت شو چې له علمه اوملايي لرې پاته شي بلکې يو نوموتی عالم اومشهوره څېره وه اونه يې دژوند اړ تياوې يوازې تر امامت او ملايي وتړلې چې په خلکو کې محتاج معرفي وي ، په رښتيا چې دغيرت ژوند يې تېر کړ اودخپل ژوند په هره برخه کې يې خلکو ته درس اوعبرت و.

دهغه ژوند او کردار دومره نه دی چې په يوه پاڼه کې دې رالنډشي که يوازې له پښتو شعر اوادب سره تړاو ، اوژبې ته خدمت يې راواخلو ډېر څه پرې ليکل کېدای شي څه معنی دهغه ټول ديني ، اصلاحي ، سياسي ، اجتماعي اودعوتي خدمتونه چې تر ډېره بهلاهم ژوندي وي . خو دا چې دده ياد دې پاته نه وي په همدومره يادونه مې ياد کړ نور ياديې دټولو په دعاوو کې : خدايه ښښنه يې په برخه او فردوس جنت يې ځای کړې ! آمين.



# فرهنگ خشونت در امریکا

اتفاق بسیار هولناکي است. 20 کودک با شلیک یک جوان 20 ساله روان پریش کشته مي شوند. پرچم هاي آمریکا به نشان عزاي این کودکان معصوم نیمه افراشته مي شود، چند روز عزاي عمومي اعلام مي شود و همه اینها براي تسلي خاطر مادران و پدراني است که فرزندانشان را از دست داده اند اما دریغ از این که به اصل موضوع و اساس این اتفاق پرداخته شود.

حمل سلاح براي چیست؟پلیس که براي ایجاد امنیت در کشور به وجود آمده است، چه وظیفه اي دارد؟ سود کارخانه هاي اسلحه سازي آمریکا از این قانون چند میلیارد دلار است که خرید و فروش و حمل سلاح در آمریکا مجاز است؟آیا سود این کارخانه ها مهم است یا جان مردم؟!

آن جوان 20 ساله چرا باید اقدام به این جنایت کند؟مشکلات روحي رواني در آمریکا چرا اینگونه فوران مي‌زند که جواني20 ساله کودکان را مورد هدف قرار دهد؟

علت این که مردم آمریکا علاقه به داشتن سلاح گرم دارند در چیست؟این کالاي مهلک به گونه اي زیبا در فروشگاه هاي اسلحه عرضه مي شود و هیچ منعي هم براي خرید آن وجود ندارد و تنها منع قانوني آن، سن خریدار است. قانون اساسي آمریکا این اجازه را داده است. کشوري که خود را پرچمدار آزادي و حقوق بشر مي داند خود را مجاز مي پندارد که مردم را مسلح کند.

بیش از200 میلیون نفر از مردم آمریکا اکنون سلاح گرم دارند و هر سال که نو مي‌شود، مانند یک تولیدلوکس مثل گوشي همراه که هر سال مدل تازه اي از آن تولید مي شود، اسلحه نیز همینگونه با مدل هاي تازه وارد بازار مي‌شود تا مردم سلاح دلخواه خود را خریداري کنند.

این قانون اکنون سال هاست که در میان مردم آمریکا به عنوان یک فرهنگ جا افتاده و مردم نیز به خاطر حمایت هایي که سیستم حاکم در آمریکا از آن مي کند، به خرید سلاح مبادرت مي کنند و به بهانه دفاع، در خانه و یا خودروي خود اسلحه را به عنوان یک ابزار اطمینان بخش در کنار خود دارند. اکنون این کالا یکي از وسائل جذاب خانه هاي آمریکایي است.

اما همین قانون سال هاست که موجب مرگ ده ها نفر از مردم آمریکا شده و مي شود. قانوني که براي حفظ جان افرادي که مورد حمله قرار مي گیرند تبدیل به کابوسي براي مردم آمریکا شده است. خانواده ها حتي نگران کودکان خود هستند که به مدرسه مي روند. امنیت در این کشور به واسطه چنین قوانیني در شدید ترین شرایط ممکن قرار دارد.

شاید بتوان گفت که خشونت در جامعه آمریکا نهادینه شده و جزوي از زندگي روزمره مردم است.

**کشت و کشتار و جنایت و قتل هایي از این دست در آمریکا بسیار اتفاق مي افتد و عادي شدن و بي تفاوتي نسبت به آن نشان آن است که این فرهنگ در آمریکا رسوخ پیدا کرده و دولتمردان آن نیز در صدد راه حل اساسي آن نیستند و حتي تلاش دارند تا این فرهنگ در دیگر کشورهاي دنیا هم رخنه کند.**

**فیلمهاي آمریکایي هالیودي را که ببینید همه آنها به نوعي همین دید گاه را مطرح مي کند. استفاده از اسلحه، جنایت، کشتار و قتل... و همین باعث شده است تا کودکان آمریکایي از هنگامي که لب به سخن ميگشایند و راه رفتن مي آموزند در تلویزیون و سینما شاهد این خشونت ها هستند و خانواده هم نمي تواند در مقابل این هجوم خشونت به حریم خانواده و جامعه کاري انجام دهد.**

**این فرهنگ خشونت آمریکایي، به خاطر ذات سیستم این کشور و مقاماتي که پشت پرده حمایت از این قانون اساسي که باعث کشتار ميشود، هدف نهایي خود را مبتلا کردن همه جوامع بشري به این عارضه سخت مي دانند و با فروش سلاح و قاچاق آن در پي گسترش فرهنگ خشونت آمیز خود به همه دنیا هستند.**

**براي مقابله با این دید گاه ویرانگر باید ابتدا مردم آمریکا نسبت به این قانون اعتراضات خود را آغاز کنند و خواستار برچیده شدن این بند از قانون اساسي که اجازه حمل سلاح را به مردم مي دهد، شوند و سپس مردم دیگر کشورها هم با اعتراضات گسترده خود خواهان جلوگیري از گسترش آن در دیگر کشورها شوند**

**تنها راه مقابله با سیاست هاي پلید مقامات آمریکایي ایستادگي مردمي است و با توجه به اعتراضاتي که در داخل آمریکا در حال شکل گیري است این اتفاق دیر یا زود خواهد افتاد. ( ج / م )**

هغه معلومات چي تر هرچا ، تـــه ورته ډیره اړتیا لرې!

-د فېشیني لباس خوښوونکیه – کفن مه هیره وه.
۲-په بنګلو او بلډنګونوزړه بایلونکیه - دقبر کنده مه هیره.
۳-دښو خوړو خوړونکیه – دچینجیو او خزنده ګانو دخوراک لپاره خپله تابیا مه هیره وه.
۴-مال دولت ته د دین او اخرت په دولت باندې ترجیح ورکوونکیه-وروسته لوځ ګورته تلل

## ومنئ:

۱-دپند وینا که څه هم ترخه وی.
۲-د ورور عذر که زړه یې هم ونه مني.
۳-د ملګري هدیه که څه هم نه وي.
۴-د غریب بلنه که زحمت هم وي.
۵-دمور او پلار امر که طبع موافق هم نه وي.
۶-خپله اشتباه که سپکاوی هم وي.
۷-دنیکي تور سري سره مینه که بدرنګ هم وي

# نگاهی به نقش موسسات خارجی (NGOs) در افغانستان

موسسات غیر دولتی خارجی در هم آهنگی و همکاری با موسسات دولتی و قوای نظامی خارجی به منظور اهداف خاصی در افغانستان فعالیت می کنند. آنها با این که پراکنده عمل کرده و نتوانسته اند بر محور منافع عمومی غرب در افغانستان و منطقه موفقیت های برجسته یی به دست آورند؛ لیکن دارای استراتیژی، تاکتیک ها، منافع و پالسی مشخص خود اند حضور آنان موازی با دولت ضعیف، بی کفایت و آلوده به فساد کابل طی سالیان متمادی مانعی در راه درک و دریافت فرهنگ و مدنیت تاریخی ما، ساخت و شیرازه بندی نهادهای اقتصادی، اجتماعی و فرهنگی داخلی، تقویه و توسعهٔ قدرت دفاعی، امنیتی و اداری، استقلال و استقرار حاکمیت ملی ما بوده است.

این موسسات خارجی که از طرف دونرها (موسسات خیریه، مراکز دینی، بانک‌ها، کمپنی‌ها، تاجران، دولتها و دیگر ارگانهای خارج از افغانستان) تمویل می شوند، نقش عمده و قدرت اقتصادی زیادی در کشور ما داشته و دارند. آنان در تمام عرصه های حقوقی، قضایی، اقتصادی، فرهنگی، بازسازی، نظامی، سیاسی، امنیتی، خبری، استخباراتی، دولت سازی، صحی، امور زنان، غیره و غیره فعالیت می کنند. موسسات مذکور بیشتر قشر جوان، تحصیلکرده و متخصص کشور (اعم از زن و مرد) را جذب کرده و به نحوی از انحا زیر تربیه و آموزش گرفته اند. هدف کلی دول غربی این بوده است تا فرهنگ سرمایه داری را در شکل و محتوای وابستهٔ آن از این طریق در جامعهٔ ما تبلیغ، ترویج و پیاده سازند. از افغانستان به عنوان پایگاه نظامی و پل عبوری به منابع انرژی آسیای میانه و حوزهٔ روسیه، نظارت بر چین و زیر فشار نهادن هند از طریق پاکستان استفاده کنند. تلاش در این بوده است تا فضای این موسسات را به جزیره های کوچک آموزش و تمرین فرهنگ غرب تبدیل کرده و عناصر و پدیده های سطحی، شعاری و پرزرق و برق آن را به جوانان انتقال دهند؛ با معاشات دالری بیشتر از ادارات دولتی، فرصتهای افزون برای معاشرت زن و مرد و دسترسی به غذا، موتر، تکنولوژی و امکانات دیگر آنان را جذب و رام سازند و قشر جوان را از احساسات فعال و قوی آزادی خواهی، استقلال طلبی، وطن دوستی، میل به سیاست و خودکفایی خالی کنند.

تجارب عملی نشان داده است، که احساس و درد وطن دوستی و آزادیخواهی در بین این نیروها در حال کاهش است. در بین این قشر

تمایل فرار از وطن و مهاجرت به کشورهای غرب بسی قوی می باشد. آن‌ها نتوانسته اند اعتماد مردم را به خود جلب سازند؛ در بین آنان و مردم دیواری از بی اعتمادی و سوء ظن وجود دارد؛ زیرا آن ها در لاک خود فرو رفته و در چهار دیواری موسسات خارجی محصور بوده اند. آنان در حقیقت روی دیگر سکهٔ دولت ضعیف و غرق در فساد کابل می باشند. در بین موسسات خارجی نیز فساد و رشوه خواری زیاد بوده است. کارمندان داخلی در پهلوی کارمندان خارجی این موسسات به فساد اداری و رشوه عادت داشته اند. این قشر که می بایست خلای دولت ضعیف و بی کفایت را در جامعه پر می کرد، صلاحیت و ظرفیت دفاع از استقلال و منافع ملی و مردمی را در جامعهٔ ما ندارد.

اکثر پروژه های متنوع این موسسات نه بر اساس منافع ملی، انکشافی و استراتیژیک کشور، بلکه بر مبنای منافع درازمدت دول خارجی، کمپنی های بزرگ، مسؤلان و کارمندان خارجی طرح شده است. پروژه سازی در واقع بیشتر یک امر کارشناسانهٔ فنی و دفتری بوده است، که مکان اصلی آن نه در میدان عمل و در بین مردم، بلکه در داخل کامپیوترها و روی کاغذ می‌باشد. هدف اساسی و غایی مسؤلان این موسسات نه خدمت به مردم و رشد و انکشاف افغانستان، بلکه جلب و جذب کمک‌ها و منابع مالی دونرها (مراکز امدادی) می‌باشد. تطبیق پروژه‌ها به شکل فرمایشی و نمایشی به اجرا درآمده است تا مراحل تخنیکی و پراتیکی آن تکمیل شده و رضائیت دونرها، کمک کنندگان و مردم خارج که در حقیقت مالیه دهندگان اصلی اند، بحاصل آید. بیشترینهٔ منابع مالی به طرح و پلانهای روی کاغذ، مصارف اداری و بروکراسی، معاشات کلان خارجیان، تدارکات، وسایل و لوازم دفتر و زندگی، مصارف امنیتی و غیره به مصرف رسیده است. این موسسات برای خارجیان در حقیقت زمینهٔ استخدام و کار به وجود آورده است. به این صورت بیشتر منابع اسعاری دوباره از افغانستان خارج شده است. گفته می‌شود که طبق قوانین موضوعه، آنها از پرداخت مالیه به دولت کابل هم معافند؛ زیرا آنان به دولت خود مالیه می پردازند.

در جمع بس متنوع و رنگارنگ کارمندان خارجی افراد و کتگوریهای زیادی شامل اند؛ از معدود متخصصان و کارشناسان گرفته، تا مأموران استخباراتی و اطلاعاتی، وابستگان کمپنی های بزرگ، نهادهای مذهبی، شرکتهای زنجیره ای، بیکاران، متقاعدین، ماجراجویان و غیره. هر کدام از اینها به منظور و اهداف خاصی قبول خطر کرده و به افغانستان می‌آیند. از جاذبه‌های عمده همچنان، معاشات بلند در افغانستان، سفرهای خارجی و امتیازات دولتی و رسمی در کشورهای خود شان است. کارمندان خارجی در افغانستان زبان انگلیسی، مدارک اصلی و یا قلابی، تخصص صحیح یا غلط و فرهنگ به اصطلاح مدرن خود را به رخ داخلی ها می کشند و خود را یک سر و گردن از دیگران بلندتر احساس می کنند. در حالی که تعداد چشمگیری از



آنها کسانی اند که در کشورهای خود کاری دست و پا کرده نمی توانند، تخصص و مدارک لازم ندارند، به الکل و مواد مخدر معتادند، به مشکلات روحی و روانی گرفتار اند و یا سخت عاشق سینه چاک پول می‌باشند.

در بین موسسات خارجی و مسؤلان دوایر دولتی کابل همواره تبانی و همکاری همراه با رقابت وجود داشته است. سران حکومت و کارمندان دولتی در پهلوی منابع عظیم اختلاس، رشوه و دزدی های داخلی همیشه تلاش کرده اند خود را در منافع موسسات خارجی هرچه

بیشتر شریک سازند. موسسات خارجی جهت کسب مشروعیت قانونی و گاهی امنیت داخلی به ارگانهای دولتی نیاز داشتند و مجبور بودند پیوند خود را باآنان حفظ کنند. خارجیان طی سالیان دراز سران دولت ضعیف کابل را در اخذ رشوه و فساد آزاد گذاشتند. کاری به کار این دولت بی کفایت، فاسد و غیر فعال نداشتند. تقاضای اصلی شان از سران دولت فقط این بوده که از موسسات خارجی دفاع نمایند. به کار شان مداخله نکنند؛ بگذارد آنان منافع خود را دنبال کنند؛ همان طوری که آنان به سران دولت اجازه دادند تا جیب های گشاد خود را پر سازند. این در حقیقت یک نوع قرارداد دوجانبه بوده است. سران حکومت و کارمندان دولت همارە در تلاش بوده اند تا خود را در منافع موسسات خارجی شریک سازند و از آنان سهم بیشتری بستانند. مردم در بین این دو کتلهٔ بزرگ فراموش شده اند و به نام شان فقط تجارت شده است.

سران پیمان ناتو و دولت فاسد کابل طی یک دهه در سازش، همسویی و هم آهنگی با نقشه های سازمان استخباراتي، حتی از مردم عذاب کشیده، جنگزده، فقیر و گرسنهٔ افغانستان امنیت و مصئونیت سادهٔ روزمره را هم گرفته اند.
سران دولت از اسم مردم برای جلب و جذب کمکهای بین المللی و اخذ سهم بیشتر از موسسات خارجی استفاده می کنند.
موسسات خارجی از مردم برای تطبیق بخشی از پروژه ها جهت قناعت دونرها و کمک کنندگان سود می جویند و مردم در واقع بهترین دام مله، طعمهٔ شکار و وسیلهٔ تبلیغاتی شان اند. در طول دههٔ اخیر در درون این موسسات خارجی فساد اداری، اختلاسهای کلان، رشوه، روز گذرانی، حیف و میل منابع، کارهای تکراری و دیگر نکات منفی فراوان بوده است. در بین سران حکومت و کارمندان دولت و موسسات خارجی مثل اینکه در زمینهٔ فساد مسابقه جریان داشته است.

برخی به این نظر اند که فساد سرسام آور دستگاه دولتی با طرح عمومی این موسسات و مافیای قدرت و موادمخدر ارتباط مستقیم داشته است. برای صحت و سلامتی افغانستان باید ریشه های فساد از درون این مجموعهٔ بغرنج و ناهم آهنگ باید از بیخ و بن کشیده شود.

. به این حساب در افغانستان قدرت سیاسی، قدرت اقتصادی و قدرت نظامی در بین مافیای قدرت، نیروهای خارجی، سران بلندپایهٔ دولتی، مافیای موادمخدر تقسیم شده است. از این میکانیزم فاسد، خشن، بی رحم و پیچیده توقع آوردن اصلاحات اساسی، طرح پلانهای استراتیژیک برای رشد و انکشاف کشور و رهبری سالم جامعهٔ جنگزدهٔ ما به سمت استقلال و آزادی خیال باطلی بیش نیست. مبارزه با فساد و چور و چپاول و اصلاح بنیادین سیستم دولتی حاضر، توسط سران موجود این نظام علیل، فاسد و تنبل امکان ناپذیر میباشد.

ترکیب و بافت قومی، نژادی، زبانی، مذهبی و سمتی جامعهٔ افغانستان در درون این موسسات نیز دامن گسترانیده است. سران این موسسات از این رقابت ها و عناصر منفی برای اداره و کنترول کارمندان داخلی در حد توان استفاده میکنند. هریک از این کتلها و گروههای قومی و منطقوی میکوشند تا موضع خود را در درون این موسسات تقویه نمایند. موسسات خارجی در سنت شکنی، پخش سطحی فرهنگ غرب و ظواهر نمایشی دیموکراسی کاذب نقش داشته اند. به بیان دیگر این موسسات در فروپاشی و درهم شکنی نظام سنتی و عنعنوی افغانستان بدون شناخت لازم از آن و بدون داشتن مدل جایگزین، خودسرانه تلاش ورزیده اند؛ به این ترتیب ناآرامی، بیکاری و فقر را در روستاها و بحران اقتصادی، اجتماعی، فرهنگی و فاصله های مدهش طبقاتی را در شهرهای بزرگ از جمله کابل سخت گسترش دادند. چنانکه دولت ضعیف، غرق در فساد و غیر مردمی کنونی باری بر شانهای زخمین و خستهٔ مردم محسوب میشود؛ این موسسات خارجی نیز به عنوان جزیره های پراکندهٔ نمایشی دور از مردم، جامعهٔ ما را به سوی بحران، نا امنی و انارشیزم مافیایی کشیدند و در پرسازی خلای موجود در افغانستان کمکی کرده نتوانستند.



# د سومالیې مسلمانان







په افریقا کې اسلام د مسیحیت په څیر ځایي دین ګڼل کیږي او دې لوې وچې ته اسلام په لومړۍ او دوهمه هجري پیړۍ کې رسیدلئ دئ .

له هغه وروسته د بیلابیلو فاتحانو او مسلمانو سوداګرو له خوا د ختیځ نه د لودیځ په لور پراخ شوئ دئ . که څه هم په افریقا کې د اسلام او عیسویت تر منځ ټولې جګړې سختې او خونړۍ وې خو بیا هم مسلمانان په دې وتوانیدل چې د افریقا ډیرو برخو ته د اسلام مبارک دین ورسوي.

په اوومه میلادي پیړۍ کې اسلام د افریقا ختیځو سواحلو ته چې هلته د عربو پخوانۍ میني او د سوداګرۍ بازارونه ؤ، ورسید .

په ۱۷ مه پیړۍ کې مسلمانانو له پرتګالي ښکیلاک ګرو سره سختې جګړې وکړې اوس مهال د افریقا لویې وچې په شمال او ختیځ کې مسلمانان اکثریت دي . د نورې افریقا په څیر اسلام په سومالیا کې هم نفوذ وموند چې اوس مهال د دې هیواد ۹۹/۹۹ سلنه خلک مسلمانان دي او مطلق اکثریت یې هم د اهل سنت د شافعي مذهب پیروان دي .

په سومالیا کې قبیله اي ټولنه واکمنه ده او مسلمانان یې په دین کلک ګڼل کیږي .

ویل کیږي د سومالیا قبیلې یو له بل سره په دیني مسایلو کې سیالي کوي او هیڅ کومه قبیله نه غواړي چې له نورو قبیلو د دیني مراسمو په ښه ډول تر سره کولو کې پاتې راشي .

په سومالیا کې بیلابیل اسلامي ګوندونه هم فعالیت لري چې تر ټولو مهم یې اخوان المسلیمن او صوفیان دي .

اخوان المسلیمن په ۱۹۲۸ م کال کې را منځته شوئ خو په ۱۹۶۰ م کال کې په سومالیا کې پراخ شوئ .

دا ګوند په سومالیا کې د الاصلاح په نوم فعالیت لري او په ۱۹۸۰ م کال کې په دې توانیدلئ چې د زیاد باره د حکومت له خوا د مذهب په نوم د خوځښتونو له منعې سره سره په دې هیواد کې په یوه مطرح مکتب بدل شي .

اوس مهال یوائې په پلازمینه موګادیشو کې د اخوان المسلیمن ګوند تر یو لک او شل زرو زیات محصل غړي شتون لري. د سومالیا وروستیو وچکالیو او قحطیو دا هیواد په نړیواله کچه مطرح کړ او د سومالیا د نوم له اخیستو سره اوس خلکو ته هغه وږې تږې او ناروغ ماشومان سترګو ته درېږي چې د مور او پلار د سترګو په وړاندې له لوږې قحطیو او ناروغیو خپل ژوند له لاسه ورکوي.

ډېر خلک دا فکر کوي چې دا وچکالي به یوائې یوه طبعي پیښه وي خو پوهان وایي په دې کې د لودیځ په تیره امریکا لوی لاس دئ .

سومالیا په ۱۹۶۰ م کال کې خپلواکي تر لاسه کړې او په ۱۹۶۹ م کال کې د (سیار بري )دیکتاتور حکومت را منځته شوئ دئ .

له دې حکومت د سرې جګړې په وخت کې شوروي ملاتړ کاوه خو د شوروي له ماتې وروسته امریکا د سومالیا د تیلو لویو او په ځای پاتې زیرمو ته په سترګو نیولو سره د سیاد بري له حکومت سره خپلې اړیکې پیا وړې کړې .

په ۱۹۸۸ م کال کې د بري په وړاندې د هاویه قبیلې او ډلې یو کانګریس جوړ کړ چې د بري حکومت یې له منځه یووړ .

له هغه وروسته د پردیو مداخلو له امله په سومالیا کې کورنۍ نښته د فرح عدید چې د لودیځ مخالف ؤ او مهدي تر منځ را منځته شوه .

په ۱۹۹۳ م کال کې د امریکا د وخت ولسمشر بل کلینټن د عدید چې د ۱۹ امریکایانو په وژلو تورن ؤ د نیولو لپاره خپلو کوماندویانو ته امر وکړ تر څو عدید ونیسي یا ووژني .

په نویمه لسیزه کې د امریکا د مداخلو له امله د سومالیا وضعیت خراب او ورانوونکې جګړې دوام درلود .

په ۲۰۰۴ م کال کې امریکا په کینیا کې د هغه حکومت په وړاندې چې په سومالیا کې اسلامي ډلو جوړ کړئ ؤ د څو سومالیایي فوځیانو له خوا یو حکومت جوړ او نړیوالې ټولنې هم په رسمیت وپیژانده .

په ۲۰۰۰ م کال کې اسلامي محاکمو یوه اتحادیه جوړه کړه چې ډېر زر یې په سومالیا کې د ډېرو خلکو محبوبیت تر لاسه کړ او په ۲۰۰۲ م کال کې په دې وتوانیده چې د سومالیا هیواد اکثریت برخه تر خپل کنترول لاندې راولي.

اسلامي محکمو په سومالیا کې یو محافظه کاره اسلامي دولت جوړ کړ .

د امریکا د وخت ولس مشر بوش چې په سومالیا کې بې اسلامي حکومت ونه شو زغملای او له بلې خوا یې د سومالیا د تیلو پریمانه زیرمو تر لاسه کولو هیله په سر کې پاله په دې پلمه چې په سومالیا کې به اسلامي حکومت دا هیواد د نړیوالو ترهګرو په ځاله بدل کړي د اتیوپیا په مرسته په سومالیا برید وکړ .



د امریکا جنګي بېړیو د اتیوپیا له فوځ سره په غړملهډول په سومالیا کې په اسلامي دولت بریدونه پیل کړل.

په دې جګړه کې په لسګونو زره بې ګناه خلک ووژل شول او د سومالیا ډېرئ تأسیسات له منځه لاړل .
اتیوپایي ځواکونو د امریکا په مرسته د سومالیا یو شمیر برخې ونیولې او د کور په کور تلاشۍ پر مهال یې په لسګونو زره خلک له اسلامي دولت سره د خواخوږۍ په پلمه ووژل .



د دې نیونو او وژلې له ویرې د پلازمینې موګادیشو په لکونو خلک د خپلو سیمو پرېښودو او په دښتو او غرونو کې اوسیدو ته اړ شول. همدا راز په ۲۰۰۷او ۲۰۰۸ م کلونو کې د سومالیا کابو یو نیم میلیون خلک له دې هیواده تیښتې ته اړ شول .

د ښینې نړیوال سازمان د دې مهاجرتونو لامل د هغوی وژله ، د کورونو نړیدل ، د هغوی په کورونو ، مدرسو او روغتونونو د وسله والو بریدونه په ګوته کړل .

د سومالیا هغه خلک چې غرنیو سیمو او سپیرو دښتو ته تښتیدلې ؤ د اوبو او خوراکي توکو له سخت کمښت سره مخ شول او ډول ډول ناروغۍ هم په کې خپرې شوې.

د اسلامي محاکمو اتحاد د امریکا او اتیوپې د ځواکونو په وړاندې یو په بل پسې ښارونه له لاسه ورکړل او په ۲۰۰۷ م کال کې د دې اتحادیې غړي اړ شول چې ګاونډیو هیوادونو ارتیرې او جیبوتي ته پنا یوسي .

په دې هیواد کې د امریکا او اتیوپې د ځواکونو خپل سریو او جنایتونو د سومالیا کابو دوه میلیونه نور خلک هم د کډوالۍ ژوند ته اړ کړل تر دې چې په ۲۰۱۱ م کال کې د سومالیا په زرګونو خلکو د قحطۍ او وچکالۍ او داخلي جګړو له لاسه خپل ژوند له لاسه ورکړ .

په دې هیواد کې د امریکا د مداخلې له امله لا اوس هم خلک له سختو ستونځو او چکالیو قحطیو او حتې مرګ سره لاس او ګریوان دي .

ډیرئ کار پوهان په دې باور دي چې په هوا کې د یو شمیر تغیرالتو په راوستلو او د الکتروني بار په کمولو او زیاتولو سره په سیمه کې د بارانونو کچه کمه او زیاته کیدای شي

په دې اساس ویل کیږي چې لودیځ په یو شمیر سیمو کې مصنوعي وچکالۍ را منځته کړې تر څو په یو شمیر سیمو واکمنې اسلامي اداري له ستونځو سره مخ کړي.

## مه ښکاره کوه:

۱-دچا عیب.
۲-دزړه درد .
۳-امانت خبره.
۴-پوره قدرت.
۵-دسفر لورى.
۶-خپله پانګه.
۷-ډیره اړتیا

## ازمایل کیږي:

۱- زورور دمقابلې په ډګر کښې.
۲-دخپلواکه فکر خاوند دکړاو او مصیبت په حالت کښې.
۳-اړمند د بې وسۍ په حال کښې.
۴-دښځې مینه دغربیۍ او نیستي په مهال.
۵-دصبر او زغم خاوند دقهر او غصې په وخت کښې.
۶-عزتمند دراکړې ورکړې په وخت کښې.

## څلوریزه

الفت

عبادت نه دی ګناه ده ډیره لویه
که طاعت حقیقي نه وي دریا وي

چوکی نه ده شخصیت دی د ساتلو
که چا خپل ځان پیژندلی په رښتیا وي

# مسلمان ولسونه

سید سعید

## د ویده !! زمریانو په څېر دي !!

ایوان ریډلي د بر تانیا چاپ سنډي ایکسپرېس خبریاله وه ،چې د ۲۰۰۱ز. په سپټمبر کي دافغانستان داسلامي امارت له اجازې اوویزې ور کولو پر ته ننګرهار ته ننو تلې وه ،نوموړې دسپټمبرپر ۲۸مه نیټه په ننګرهار کي دامنیتي ځواکونوله خوا ونیول شوه او تر لس ور ځني بندوروسته داکتوبرپر ۸مه نیټه خوشي شوه ،دې تر خوشي کیدووروسته «دطالبانو په منګولو کي »په نوم کتاب ولیکه ، په کتاب کي یې دخپل تېر ژوندخوږې او تر خې ،افغانستان ته راتګ ،بند،خوشي کیده او په لندن کي یې په اړه غبر ګونونه لیکلي دي .

ریډلي دطالبانو په منګولو کي (کتاب)لیکي چې یوه ورځ دجېل مشر اودبهرینوچارووزارت دوه مامورین راغلل ،راته ویل یې چې : ته زموږ مېلمنه یې ،نور دي له استخبارا توسره کار نشته ،زه ددوی په دې خبره ډیره خوشحاله شوم ځکه دااددې نښه وه چې دجاسوسۍ تور راڅخه لیري شو،خوددوی پوښتنوته مي تر پایه ځواب نه دی ویلی ،بلکي په سپکوسپورواوظالمانومي مخاطب کړل ،په پښو کي مي ور تف کړل اوځني روانه شوم .مابه له طالبانوسره ډیره ګستاخانه رویه کوله ،خوهغوی به نورهم رابانديي مهربان شول اور شتیادیوې مېلمنې په ستر ګه یې راته کتل ،مادهغه څه له امله چې په لویدیځ کي مي ددوی په اړه اوریدلي وو،فکر کاوه چې دوی به ماووهي او تیری به رابانديي و کړي ،لکه موږچې په ګوانتانامو ابوغریب او..... کي و کړل ،خوواقعیت بر عکس ؤ،نه یې عز ته شوم اونه هم ځورول شوم .عجیبه لاداچې دخوشي کیدوپر مهال دزندان مشر یوه ښایسته دودیزه افغاني جوړه اولوپټه راته ډالۍ کړه .

وروسته لندن ته په لاره په الو تکه کي پال اشفورډ دطالبانو په اړه زمانظر وغوښت ،ور ته ومي ویل چې :«زماسره یې ډیر ښه چلندو کړ ،ښایي خلګ دهغوی ستاینه ونه زغمي خوزه بایدر شتیاووایم ». اشفورډځواب راکړ چې :بلې !خلګ به همداسي څه (دطالبانوستاینه ) خوښ نه کړي ،خورشتیاداده چې هغوی پر خپله ژمنه وفاو کړه اوستادراخوشي کیدووعده یې عملي کړه ، ماته ریچارډ ډیسموندیوسپین چیک راکړی ؤچې ستادخوشي کیدوپه بدل کي یې هغوی ته ور اندي کړم ،دوی ډیرعز تمن خلګ وو ،له اخلاقویې یوه شوم چې دپیسوور اندیزه مي ور ته ددوی دسپکاوي پر ته بل څه نه وي نوډډه مي ترې و کړه .

ریډلي وایي چې :دطالبانودلس ور ځني درناوي بر عکس چې لندن کي یوټکسي ته وختلم ټکسیوان وپیژندلم راته ویې ویل چې :«ته هغه مرغۍ نه یې چې طالبانونیولې وې ؟ماوویل هو !ایاهغوی پر تاجنسي تیری و کړ ؟»،زماځواب نه ؤ،ټکسي چلونکي وویل :«که دهغوی پر ځای زه وم نودجنسي تیري پر ته به نه وای راڅخه تللې ».

مادطالبانوسره ژمنه کړې وه چې تر خوشي کیدووروسته به داسلام مطالعه کوم اوس نوچې دوی خپله ژمنه پوره کړه ،زه هم پر خپلې وعدې کلکه ولاړه یم ،دلته په لندن کي مي دمسلم کالج آف لندن له مشر ډاکټر ذکي بدوي سره ولیدل ،نوموړي داسلام په اړه دمعلوماتو راکولواوهمکارۍ ټېر وواهه. دمعلوماتوله مخي دخوشي کیدوڅخه یونیم کال وروسته ریډلي اسلام قبول کړ اودمریم نوم یې ځان ته غوره کړی دی .نوموړې اوس دیوې مسلماني محجوبي



میرمنې په توګه دخپلو ژورنالیستکي کارونو ترڅنګ اسلام ته ددعوت اود مسلمانانو دهوساينې هانداوهڅې کوي .

مریم (ریډلي) په یوه لیکنه کي چي واشنګټن پوسټ هم خپره کړې لیکلي چي :دطالبانوسره ترزنداني کیدومخکي حجاب لرنکي ښځې ډیري مظلومي راته ایسیدې ،خواوس راته جوته شوه چي په حجاب کي څومره عزت دی . ترخوشي کیدووروسته چي مي داسلام مطالعه پیل کړه زمادتمي خلاف چي اسلام ښځوته څومره حقوق ور کړي ؤحیرانه کړم ، کوم کسان چي دمسلمانوښځو پرحجاب نیوکي کوي اوترمنځ یې داړیکوخپند،ربړه اودبې باورۍ سبب نوموي ،په حقیقت کي دوی نه پوهیږي چي حجاب څومره وقار،ډاډاوخوښي ښندی شي ،زه دحجاب اوبې ستري دواړوحالتونو تجربه لرم ،دحجاب ښیګڼې اوبې حجابۍ بدې پایلي ښه راته معلومي دي نوا وس په زغرده ویلای شم چي هغه سیاستوال ،لیکوال اودبشر د حقونو فعالان !!سخت تېروتلي دي چي پرحجاب نیوکي کوي ،د لویدځ زیاتره وګړي په همدې اوور ته نوروپلمو داسلام پر دین اعتراضونه کوي ، که قران کریم په غورسره ولوستل شي هغه حقوق چي لودیځ کي میرمنواوس ترلاسه کړي اوياېې دترلاسه کولوهڅې کوي اسلام څوارلس سوه کاله مخکي خپلوپیروانو(میرمنو)ته ور کړي دي .

زه چي داسلام په مبارک دین مشرفه شوم دیوې مسلماني محجوبې میرمنې په حیث دلته (لویدځ ) دمهذبواومتمدنو!! ټولنواووګړوله سختوننګونو اوګوتنیونوسره مخ شوم ،داسي چي مایې بیخي تصورهم نه کاوه ،یوورځ په یوه ټکسي کي کورته روانه وم ،موټروان چي زماحجاب ته پام شوعجیبه غوښتنه یې راڅخه وکړه : «دلته بمونه پټ نه کړې »،ورپسې یې عجوبه پوښتنه وکړه :«اسامه چیري دی ؟».

زه په حجاب کي ځان ډیرخوندي احساسوم ،دښکلاپه سیالۍ کي دافغاني ویداصمدرۍ ګډون اونیمه بربنډوجامویې ډیره حیرانه کړم خولویدیځوالودصمدزۍ داکارډیروستایه اوجایزې یې ورکړې

ریډلي دیوې مسلماني محجوبې میرمنې په توګه داسلام په دفاع کي په بیلابیلوځایونوکي ښې لیکني اوویناوي کړي دي ،ددې په اندمسلمانان دوُده شوو زمریانوپه څېردي هغه داسي چي په ځینومېلو کي به مولیدلي وي ،چي یوسړي زمري ته دکوم منترپه وجه پړی وراچولی وي اولوبوي یې ،ننداړچیان اوآن نیونکی پوهیږي چي دزمري سره ډېرطاقت شته که ویې کاروي سمدستي ځان خلاصولی شي ،خوزمری خپله نه پوهیږي چي له ده سره دومره زورشته .همداشان مسلمان ولسونه له خپله زوره ناخبره دي ځکه نو دکمزوروومستبدو اوغلامو واکمنوترجبراوجادولاندي سختي شپې تیروي ،خود خلاصون جرئت نه شي کولای ،دلته هم کټ مټ ننداړچیان ،ددوی غلام واکمنان اونړیوال باداران یې پوهیږي چي عواموسره ډیرزیات زورشته که لاس په کارشي ددې بلواکوحاکمانوواکمنۍ به ډیرژرله منځه یوسي .خوافسوس چي مسلمان ولسونه لاتراوسه هم نه پوهیږي چي خدای جل جلاله څومره ډیرزورور کړي دي .په تیونس اومصر کي دمسلمانوعواموزورنړۍ ولیدچي په یوځو لاریونونوېې ګوډاګي واکمنان لکه بې روحه بتان وپرځول .

دمریم (ایوان ریډلي )دمسلمانیدوانګیزه داسلام دټولنیزنظام هغه عادلانه احکام اوارشادات ووچي له مخې یې طالبانوددې سره چلند کاوه ،په پور ته کرښو کي موولوستل چي ریډلي دخپلونیونکوسره – ددې په ژبه – څومره ګستاخانه رویه کوله په داسي حال کي چي ټوله ملامتي په دې که وه ،ځکه داپه ډیروترینګلوحالاتو کي په ناقانونه توګه افغانستان ته اوښتې وه ،خوهغوی(طالبانو) که څه هم ددښمن اویاشکمن بهرني تبعه په حیث په بند کي ساتله ،مګردومره نیک چلندیې ورسره کاوه چي پر دې یې ډیرزیات مثبت اغیزوکړ .ایوان په پای کي دداسي چاله اخلاقوڅخه متاثره شوه چي په لویدیځ کي په نړیواله کچه دبشرپه تېره دښځودحقونوناقضین ګڼل کیدل ، دې چي په خپلوسترګودطالبانوښه چلندولیدددوی په اړه اوریدلي خبري یومخ مبالغه اوتبلیغاتي پروپاګنده ورته وبرېښیده .مریم ریډلي په ډاګه وایې چي :«دمسلمانیدوترټولومهمه انګېزه یې دطالبانونیکه رویه اوښایسته اخلاقي چلندؤ» .

# لشکرکشی آمریکا به ۳۵ کشور آفریقا

درحالی که پیش از این جنگ پنهان آمریکا در سومالی، یمن، لیبی و مالی فاش شده بود، اکنون مقام‌های آمریکایی به‌طور علنی از اعزام نیروهای خود به حداقل ۳۵ کشور آفریقا در اوایل سال جدید میلادی خبر داده‌اند تا لشکر کشی آمریکا به بهانه مقابله با تروریسم وارد فاز جدیدی شود.

ج‌نرال ریموند اودیرنو فرمانده ستاد کل نیروهای مسلح آمریکا در گفت و گو با روزنامه واشنگتن تایمز با اعلام علنی این مسئله تأکید کرده است که اعزام این نیروها در راستای برنامه های آمریکا برای استقرار استراتژیک نیروهایش در گوشه و کنار جهان صورت می گیرد تا این کشور بتواند در مواقع لزوم به صورت سریع به چالش ها واکنش نشان دهد. گزارش ها نشان می‌دهد که بیشتر این نیروها قرار است قبل از مارچ سال ۲۰۱۳ از پایگاه فورت رایلی در ایالت کانزاس به کشورهای آفریقایی اعزام شوند.

به همین خاطر فرماندهان این پایگاه، نیروهای آشنا به زبان سواحیلی (زبان مرسوم در بسیاری از کشورهای آفریقایی) را در اولویت برنامه های آماد گی خود برای اعزام قرار داده‌اند. مقام‌های آمریکایی از مدت ها پیش اعلام کرده اند که حضورشان در کشورهای آفریقایی به خاطر افزایش نفوذ القاعده و لزوم مقابله با تروریسم در این قاره افزایش پیدا می کند.

در یمن و سومالی، حملات آمریکا پیش از این به وسیله هواپیماهای بدون سرنشین و نیروهای ویژه SEAL صورت گرفته است و مقام های آمریکایی در مهر ماه هم به صورت رسمی از لزوم عملیات گسترده نظامی در مالی خبر دادند. با وجود این، حضور نظامی آمریکا در کشورهای آفریقایی تاکنون حداقل به دور از محافل رسمی بود و اکنون برای نخستین بار است که مقام‌های آمریکایی به‌صورت رسمی از اعزام نیرو به ۳۵ کشور آفریقایی خبر می دهند. منابع وزارت دفاع آمریکا اعلام کرده اند که اعزام نیروها در ابتدا به‌صورت محدود صورت می گیرد و این نیروها برای آموزش نظامیان آفریقایی برای مقابله با تهدیدالقاعده فعالیت خواهند کرد.

با وجود این مقام‌های ارشد نظامی آمریکا تأکید کرده‌اند که این نیروها برای هر نوع فعالیت ازجمله عملیات نظامی آماده خواهند بود. ج‌نرال دیوید

رودریگوئز، فرمانده نیروهای آمریکا در آفریقا با تأکید بر این مسئله در گفت وگو با آسوشیتدپرس گفت: اگر عملیات نظامی در آفریقا لازم باشد نیروهای ما در کشورهای این قاره نخستین راه‌حل ما هستند اما آنها برای شروع عملیات باید از وزیر دفاع مجوز لازم را

آمریکایی قصد دارند به صورت رسمی در کشورهای آفریقا یی دست به عملیات نظامی بزنند.

آفریکام که مقر مرکزی آن در اشتوتگارت آلمان است یکی از 9 فرماندهی نظامی آمریکا در جهان به‌حساب می‌آید که مسئولیت عملیات و روابط نظامی



بگیرند. جنرال اودیرنو هم در گفت وگوی خود با واشنگتن تایمز تأکید کرده است که نیروهای اعزامی به کشورهای آفریقایی قابلیت فعالیت های مختلف ازجمله آموزش، همکاری های دو و چند جانبه و همچنین شرکت در عملیات جنگی را خواهند داشت.

نام کشورهای آفریقایی که مقصد نیروهای آمریکایی هستند به‌صورت کامل اعلام نشده است اما منابع آگاه اعلام کرده اند که لیبی، سودان، الجزایر، نیجر، سومالی، کنیا و مالی ازجمله کشورهایی هستند که نظامیان واشنگتن در آنجا حضور خواهند داشت. بدون شک تأسیس ستاد فرماندهی نیروهای آمریکایی در آفریقا (آفریکام) در سال ۲۰۰۷ نشانه مهم دخالت آمریکا در کشورهای آفریقایی بود اما اکنون اعلام اعزام علنی نیرو نشان می‌دهد که حضور نظامی آمریکا در این منطقه وارد مرحله جدیدی شده است و مقام‌های

این کشور را در کشورهای این قاره بر عهده دارد. جنرال اودیرنو با اعلام اینکه در راهبرد جدید دفاعی آمریکا طرح موسوم به «نیروهای متحد منطقه ای» به نیروهای مسلح این کشور اجازه اعزام نیرو به کشورهای مختلف را می‌دهد در این رابطه گفته است: پیش از این ما به دولت های آفریقایی گفته بودیم هر وقت که نیاز به کمک دارند ما را خبر کنند و ما آنجا خواهیم بود.

اکنون در وضعیت جدید فرماندهان نظامی ما با اطمینان بیشتری می توانند فعالیت کنند. مقام های آمریکایی پیش از این هم به بهانه حمله به کنسولگری این کشور در بنغازی از لزوم گسترش حضور نظامی خود در کشورهای آفریقایی خبر داده بودند و اکنون به‌نظر می رسد آمریکا می خواهد در سراسر این قاره ردپای خود را به جای بگذارد

# ولي دالله ( جل جلاله )او دمحمد( صلی الله علیه وسلم )

# نومونه په عربی ځرګندیږی؟

عبدالغفارجُبیر

**ماولی دالیکنه وکړل:**

دعلم په پټولو کی وعید:

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من سُئل عن علم فکتمه ألجم یوم القیامة بلجام من نار . رواه ابوداؤدوالترمذی وحسنه وابن ماجه وابن حبان فی صحیحه والبیهقی ورواه الحاکم بنحوه وقال صحیح علی شرط الشیخین ولمیخرجاه.

ژباړه : حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلام فرمایی چې له چاڅخه دڅه علم پوښتنه وشی (چې دی په پوه ؤ)لکن هغه ئې پټ کړنودقیامت په ورځ به ورته داورواګی واچولی شی.[1]

نوکله چې له ماڅخه پوښتنه وشی نوزه کوښښ کوم چې دخپلومعلوماتوپه ترڅ کی ورته ځواب ورکړم، اوکوښښ کوم چی ددې حدیث شریف ترمصداق لاندی رانشم، داچی له ماڅخه پوښتنې شوی وې نوځکه می دالیکنه وکړه، اوخپل تروسه پوری می یوڅه ورباندی ولیکل.

لکه څرنګه چې په دې ورستیووختونو کی دانټرنیټ له لاری ډیروملګرواڅخه غوښتنه وکړه چې بایدزه په دې هکله یوه علمي څېړنه وکړم حقیقت روښانه شی، اوداثابته شی چې ولی دالله جل جلاله نوم اوداسلام دسپیځلی پیغمبر حضرت محمدصلی الله علیه وسلم مبارک نوم دخلکوپربدنو، دونوپرپاڼو، پرډبرو، پرګلانواونورشیانو کی ښکاره کیږی یواځی په عربی باندی؟ اوپه مجموع کی دنړی له ګوټ ګوټ نه داپوښتنې رالیږل شوی دی:

۱: ولی یواځی دالله نوم په عربی باندی ځرګندیږی؟

(له جرمنی څخه الهام)

۲: ایاوالله جل جلاله ته په پښتو کی (خدای)اوپه دری کی (خدا )استعمالولای شو؟

(فاطمه خور له متحده اماراتوڅخه)

۳: دعربی ژبې فضیلت څه شی دی؟

(له کویټ نه ام خالد)

۴: دالله جل جلاله نوم ولی په نوروژبولکه انګلیسی، هسپانوی، فرانسوی باندی نه ځرګندیږی؟

(له امریکانه احمد)

اودې ته ورته پوښتنوزه ودې ته وهڅولم چې بایدلیکنه ورباندی وکړم، ځینو کسانوداهل سنت په نامه داسی ایمیلونه راولیږل چې والله ته (خدای )یا (خدا )ویل کفردی، العیاذباالله، اوځینوبیانورڅه، په دې څېړنه کی ماپورتنی اوداسی نوری پوښتنې ټولې پکښې رانغښتې دی، یوشی چې زه ئې بایدیادونه وکړم هغه دادی چې یوی خورماته دبریښنالیک له لاری په بی بی سی ویب پاڼه کی دوړمې خورپه هکله لنک راولیږی چې تاسی یی هم لوستلای شی، چې دوړمی خورپرمخ باندی دالله جل جلاله اودمحمدصلی الله علیه وسلم نومونه ځرګندشوی وه دالیکنه یوې اروپایی میشتې لیکوالې خور ملالی بشیر کړیده، زه نه یم خبرچې ملالی بشیرپه اسلام کی پوره معلومات نلری اوکه دمستشرقینودسیوری تراغیزولاندی راغلې ده،یوڅوک هرلیکنه



لیکلای شی او خپرولای یی شی، خو په مذهبی لیکنو کی زښته ډیر احتیاط په کاردی، څوک ناول لیکی، څوک کیسې لیکی او ځینی نورڅه چې دا ټول د تخیل محصول دی، که کومه اشتباه پکښی وی نوڅه پروا یه دی نه کوی چې دالیکنه یو تخیلي انځوردی اوغیر حقیقی لیکنې دي خو مذهبی لیکنې بیا داسی نه دی مذهبی لیکنه هراړ خیز معلومات او پوره پوه اودقت غواړی که یوڅوک مذهبی لیکنه نشی کولای نو اقلاباید دانټرنیټ په دې نړۍ کی بایدله یو عالم سره اړیکی ونیسی او خپله لیکنه بیا خپره کړی، خوزه ودې ګرانې خور ته دعاء کوم که چیری دې خوردالیکنه نه وای خپره کړی نو بیا پردې موضوع باندی دومره څېړنه نه کیدل، اوس به هم ملاله خوراوهم نورامت مسلمه ورڅخه استفاده وکړی. دملالۍ بشیر خوردلیکنې یوه برخه داده:

لنک دادی:

http://www.bbc.co.uk/pashto/interactivity/2012/08/120817_ss-malalai-girl-with-allahs-name-on-her-skin.shtml

ملالۍ بشیر اروپا مېشته افغانه لیکواله

لومړۍ خبره دا چې خدای پاک ولې داسې معجزو ښودلو ته اړ دی؟ آیا دا ټول کاینات او په خپله حضرت انسان معجزه نه ده که څنګه؟

دوېمه خبره دا چې د خدای (ج) او محمد (ص) نومونه هر وخت په عربي ولې راڅرګندېږي؟

کېدای شي عربي د قران د ژبې له امله سپېڅلې وګڼو خو په نړۍ کې ډېر مسمانان په نورو ژبو هم لیک لوست کوي.

دا نومونه ولې په هسپانوي، انګرېزي، روسي، فرانسوي او داسې نورو ژبو نه دي؟

آیا د عربي لیکدود نه لوستونکې هغومره ښه مسلمانان نه دي که څنګه؟

که داسې معجزې په نورو ژبو رابښکاره شي، غېر مسلمانو ته به چې په عربي نه پوهیږي، ښه او مستقیم پیغام وي که نه؟

که داسې معجزې په نورو ژبو رابښکاره شي، غېر مسلمانو ته به چې په عربي نه پوهیږي، ښه او مستقیم پیغام وي که نه؟

خو یوه خبریال هم دانه دي کړي چې د ساینس په دې پرمختللي زمانه کې د ورځې پر پوستکې د رابښکاره شوو نومونو په اړه طبي څېړنه وکړي او د کوم جلدي ډاکټر سره خبرې وکړي".

**ولی خدای جل جلاله خپل اسم ذات (الله) ښکاره کوی؟؟؟**

دا مسلمه خبره ده چې الله جل جلاله ودې ته اړیتانلری چې، خپل مبارک نوم ښکاره کړی، خو وبل لورته لکه څرنګه چې دحضرت آدم علیه السلام څخه نیولی بیاتر اوسه او بیاتر قیامته پوری به داسی انسانان وی چې دالله نافرمانی به کوی، که په نړۍ کی دشرک اوبت پرستی وتاریخ ته وګورونو د اسلامي تاریخ په زرینو پاڼو کی داراته معلومیږی چې بت پرستی دحضرت آدم علیه السلام څخه وروسته دحضرت شیث علیه السلام دوفات څخه پیل کیږی، دهغه راهیسی داشرک ودې اندازې ته ورسیدی چې انسانانو (مشرکینو) دبنی نوع انسان عبادت پریښوداو وحیواناتو ته ئې مخه کړه، او ځینو خو بیا حیوانات هم پریښودل او وجماداتو ته ئې سرپه سجودا پرېدی، سُبحان الله په اوس وخت کی داسی انسانان شته چې لمرخپل معبود بولی، څوک وسپوږمۍ ته سر په سجده پراته دی، څوک دبیزوګانو عبادت کوی، څوک دمارانو عبادت کوی، څوک دشیطان عبادت کوی، څوک دموږکانو عبادت کوی، څوک دونو عبادت کوی، څوک دستورعبادت کوی، څوک دملائیکو عبادت کوی، څوک دسپوږمۍ عبادت کوی، څوک داور عبادت کوی، څوک دسمندرو عبادت کوی اوداسی نور .... ایاداانسانان نه دی؟ عقل نلری؟ خوراک او څیښاک نه کوی؟ تعلیم نلری؟ دښه اقتصاد خاوندان نه دی؟ بلکې هرڅه لری او په هر څه پوهیږی لکن خدای جل جلاله دداسی خلکو لپاره خپل اسم ذات په مختلفو څیزونو کی ښکاره کوی، چې یوځل بیاورته وښیې چې یواځې او یواځې الله جل جلاله برحق معبود دی او بس، که چیری دی انسانانو فکر کولای نو په ټوله نړۍ کی به دشرک ټغرټول وای، اوس زه درته دنړۍ دمذهبونو په هکله څه معلومات درکوم، چې دویکفیډیا څخه می رااخیستی دی چې داخبره به ښه جوته شی چې ولی الله جل جلاله خپل مبارک نوم (الله) او دخپل حبیب نوم (محمدصلی الله علیه وسلم) په انسانانو، ډبرو، ونو، میوو، سبزیجاتو، وریځو، ماهیانو اونورو... کی ښکاره کوی.

دټولی نړۍ نفوس (6.9) بلیونه دی، چې په دې ټوله نفوس کی دنړۍ ۴۳٪ سلنه ئې عیسایان دی چې ټول شمیر ئې (۴۳۳۱۵۰۹۰۰۰) کیږی، دا ټول په دې عقیده او باوردی چې حضرت عیسی علیه السلام دخدای ځوی دی نعوذبالله، او خدای دی، نعوذبالله دا ټول شرک کوی، ایاپه اوسنی وخت کی عیسایان یوغټ طاقت نه دی؟ ددوی اقتصاد، فوځی نظام، تعلیم، او پرمختګ ترټولوزیات دی، نو بیا ولی حضرت عیسی علیه السلام دخدای ځوی او یاهم خدای بولی؟ ایادوی عقلونه نلری؟ ایادوی وځانوته پوهان، تعلیم یافته، روشنفکران اودنړۍ پرمختلی قوم نه وایی؟ که داسی ده نو ولی دالله جل جلاله سره شرک پیداکوی؟ دوی واسمانواو مځکوته نه ګوری چې چاپیداکړیدی، اودوی په دې هم ښه پوهیږی چې حضرت عیسی علیه السلام زموږ په شان

یوانسان ؤچې خوراک ئې کاوه، ځینباک ئې کاوه چې ددوی مقدس کتاب بایبل هم وربإندی ګواه دی، چې حضرت عیسی علیه السلام انسان اوبشر ؤ داچې دوی کاڼه، دی حق نه اوری، ګونګیان دی حق نشي ویلای اوړانده دی حق نشي لیدلای نوځکه الله جل جلاله داسی معجزې په هروخت کی ور ته ښکاره کوی. چې الله جل جلاله یودی شریک نلری اومحمد صلی الله علیه وسلم دهغه اخیری پیغمبر دی.

دنړۍ (۱۶٪) سلنه خلک چې دټولوشمیر (۱۱۰۰۰۰۰۰۰۰) یوولس سوه میلیونه دی، مطلق دخدای دوجودڅخه منکر دی، الله اکبر الله اکبر الله اکبر، داهغه خلک دی چې غیر مذهبی خلک دی، لکه ماده پرستان، طبیعت پرستان، کمونستان اوداسی نور... داخلک په دې آنددی چې انسان دوابښه په شان ژالوی شواوبیادوابښه په شان ولاړی، نه اخرت شته اونه خدای شته نه حساب او کتاب شته اونه هم دوږخ اوجنت شته، داهم هغه خلک دی چې لوړلوړ طاقتور خلک دی، په تخنیک کی ښه پرمختللی دی، په تعلیم کی هم مخ په لوړه دی، نوکه دوی صرف خپلو بدنو ته کتلی وای دوی به دااعتراف کړی وای چې خدای جل جلاله شته، خواوس دوی هم کاڼه، هم ګونګیان اوهم ړانده دی، نوځکه الله جل جلاله داسی معجزې ښکار کوی.

(15.48%) هندوان دی، چې ټوله شمیر ئې (۹۹۹۸۰۰۳۵۸) کیږی، په نړۍ کی شتون لری، دهندوانوعجبه عقیده ده، ځو ک ئې درې خدایان‌منی، ځو ک ئې (۳۰۰)، منی، ځو ک ئې (۳۰۰۰) ځو ک ئې (۳۰۰۰۰۰۰) دری‌میلیونه‌اوځو ک‌ئې وهرشی ته خدای وایی، نعوذبالله، هندوان هم لرغونی تاریخ لری، ښه تهذیب لری، په اوسنی وخت کی تعلیم اوژواک ئې نسبتا ښه دی، خوددی باوجوددوی پرواحدخدای جل جلاله باندی ایمان نلری، اوشریکان ور ته نیسی، داولی؟؟؟ دهمدی خلکولپاره الله جل جلاله دامعجزې وربښکاره کوی‌چې‌دوی‌فکر وکی‌چې الله جل جلاله یودی اوبل دده په مثل نشته، داهرڅه دده مخلوقات دی اودی ئې خالق دی.

(35.4%) سلنه مسلمانان دی چې شمیر ئې (۲۸۱۹۳۱۴۰۰۰) کیږی په نړۍ کی شتون لری، که څه لږدعقل په ستر ګوور ته وکتل شي نودابه جوته شي چې په نړۍ کی په سلوکی (۳۵) کسان خدای جل جلاله منی چې واحداولاشریک دی، اوکیدای شي چې په دې مسلمانانو کی اغاخانیان هم ګډون ولری، داځکه چې دوی هم ځانوته مسلمانان وایی اوحال داچې دوی اغاخان خدای بولی اوله اسلامه وتلی ډله ده، بهایان به هم پکښی وی، داځکه چې بهایان هم عبدالبهاء خدای دځان بولی اوله اسلام وتلې ډله ده، احمدیان هم ځانونه مسلمانان بولی کیدای پکښی وی، داځکه چې دوی دفخرالموجودات حضرت محمدصلی الله علیه وسلم درسالت اونبوت څخه منکردی اونه ئې منی نوځکه دوی له اسلامه وتلې ډله ده، اوکیدای سی داسی ډیری له اسلامه‌وتلې‌ډلې‌پکښی وی، اوحتی ځینی هم پکښی دی چې محمدصلی الله علیه وسلم خدای بولی اوداسی نور... نوکه دغه (۳۵) سلنه ښه وکتل شي نوډیرلږکسان به پاتی شي چې موحدین به وی اونورټول مشرکان دی اوله دینه وتلی خلک اویاهم‌هغه کسان‌دی چې خدای نه منی، نوځکه خدای داسی معجزې ښکاره کوی.

د(۱۰٪-۷٪) پوری بودایان دی، چې بودامعبودبرحق بولی اودهغه عبادت کوی، اوحال داچې دهغه داسی څه ښکاره فلسفه هم نشته، اونه ئې په دین کی کوم عبادت شته بلکې پریوڅواخلاقی ټوټوباندی مشتمل دی اوبس، داهم الله جل جلاله په وحدانیت نه منی، نوځکه الله جل جلاله داسی معجزې ښکاره کوی.

یادونه: زماسره دالله جل جلاله اوحضرت محمدصلی الله علیه وسلم دنومونو په سوونوانځورونه دی، چې ماپرفېس بوک باندی هم خپاره کړیدی، اوپه دې انځورونو کی داسی هم شته چې په کورونو کی په کامروباندی اخیستل شوی دی، اوځینی حتی موږپخپله اخیستی دی چې هیڅ شک اوشبه پکښی نشته.

## دالله جل جلاله دنامه څیړنه:

الله، معبودبحق، اصله (أله) دخلت علیه (أل) ثم حذفت همزته وادغم اللامان.

الله ومعبوبرحق ته ویل کیږی، دالله نوم په اصل کی (أله) ؤ، چې وروسته (أل) پرداخل شو یعنی (أل أله) شو، دوه لامان سره یوځای شول، چې ددوی دادغام له کبله همزه ولاړه او(الله) ورڅخه جوړشو.

اللهم: کلمة تستعمل فی النداء مثل، یاالله

د(اللهم) کلمه دنداء لپاره استعمالیږی، چې کله موږوالله ته خپل اواز کوو لکه (یاالله).[2]

اوس داجو ته شوه چې د(الله) نوم دالله جل جلاله لپاره اسم ذات دی، اودمعبودبرحق په معناسره دی، چې دالفظ دهیچالپاره نشي استعمالیدلای، بیله معبوده برحق الله جل جلاله څخه، داچې په قران کریم کی الله جل جلاله ۹۹ نومونه لری دالله څخه ماسوانور ټول ئې صفات دی، لکه الرحمن، الرحیم، الملک ،القدوس، السلام، المهیمن، العزیز، الجبار، المتکبر اوداسی نور....

دالله جل جلاله نوم په قرآنکریم کی (۲۶۹۷) ځله راغلی دی، اود(اللهم) ۵ ځلی راغلی دی.[3]



داچې الله جل جلاله یواځی د(الله)نوم پر خلکو، پاڼو، میوو، ډېرواونور شیزونوکی ښکاره کوی یوه وجه ئی داده چې دادمعبودبرحق اسم ذات دی اودانوم یواځی اویواځی په یوه رب پوری ځانګړی دی اوبس . په نړۍ کی ډیرانسانان شته دی چې دشیطان، دمار، دموږکانو، دبیزوګانو، ستورو، لمر، اوبو تاتوعبادت کوی وهغو ته دوی الله نه وایی بلکې یوځانګړی نوم ور ته لری، چې دوی به ور ته دیوه شی متصرف، واکمن، دجنت پلار، دبخت ښبنتن اونورنومونه ور ته لری، داچې له دوی سره مشابهت رانشی نوځکه رب العزت خپل اسم ذات(الله) ښکاره کوی.

**دالله جل جلاله دنامه دذکر ګټې:**

۱:هرورځ په یوزر (۱۰۰۰)ویلوسره دویونکی یقین بشپړ جوړیږی.

۲:دجمعې په ورځ ترلمانځه دمخه چی سړی پاک وی اوپه خلوت کی وی اودالله ذکر وکړی که هرڅومره ستونځمن مقصدئې وی الله جل جلاله به ئې ور ته اسانه کړی.

۳:دهرلمانځه وروسته دالله جل جلاله دنامه ویونکی دکشف خاوند کیږی.

۴:که چیری دالله جل جل له نوم (۶۶)ځلی ولیکل شی اوبیاپه اوبو کی ونستیبرل شی اویوه ناروغه ته ور کول شی نوالله جل جلاله به شفاء کامله ورپه برخه کړی.

۵:که یوڅوک دالله جل جلاله سره مینه لری دالله دنامه ذکر کوی اوذکرپه پای کی (هوالله الرحیم)ووایی نودهغه ایمان به دشیطان له منګولواوشره به په امن کی وی.

۶:که چیری یوڅوک (۱۰۰۰) ځله (یاالله هو)ووایی نوالله جل جلاله به ئې دایمان نورزیات کړی.

۷:کوم څوک چی دجمعې په ورځ دمازیګر دلمانځه څخه ورسته مخ پرقبله کښینی ترمابنامه پوری (یاالله یارحمن)ووایی بیاچی له الله جل جلاله څخه هرمشروع شی وغواړی الله جل جلاله ئې ور کوی.[4]

بله وجه داده چې (الله) په عربي ژبه کی ور ته وایی اودعربې ژبې فضیلت پرنوروټولو ژبوباندی په اسلام کی ښکاره ده، اوهغه داچې:

**عربي ژبه دقرآن ژبه ده**

دځمکې پرمخ عربي ژبه یواځنۍ ژبه ده چې پرنحوي اوصرفي اوصولواوښستونوباندی جوړه ده، داژبه دومره فصیحه اوپراخه ژبه ده که چېری موږ په پښتوکی وآس ته یونوم لرونو په عربي ژبه کی ترسلوزیات نومونه لری، که چیری وزمری ته موږیونوم (زمری)لرونو په عربي کی تر ۳۰۰ زیات نومونه لری، وبل لورته دعربي ژبې هرتوری وځانته ریښه اوبنسټ لری، دبیلګې په ډول سره قلم رااخلو:

- (قَلَمَ) دپریکولوپه معنادی لکه په عربی کی چې وایی، قلم الشئ، دیوشی پریکول

- (قَلّمَ) لږلږپریکول

-(اَلقَلَم) دلیکلوقلم، ترڅوچې وتراشل شی اوجوړشی، اوکه جوړنشی نوور ته (قصبة اویراعة) ور ته وایی.

- (قَلَمْ) داهغه قلم دی چی جوړشی اولیکلو ته چمتوشی.[5]

اوکه موږوبین المللی ژبې انګلیسي ته راشونوهغه تر ۱۲ زیاتوژبوڅخه جوړه شوی یوه ژبه ده، چې زیات هغه توری چې ریښه لری ویونانی ژبې اویاونوروژبو ته ځی، همداوجه ده چې انګلیسی ژبه په لیکلو اولوستلو کی ستونځې لری اوګرامرئې هم دستونځوسره مخامخ دی، وبل لور ته که موږدعربي ژبې وګرامر (پښویه، صرف اونحو) ته راشونوعربي ژبه کی یوقانون موجوددی دبیلګې په ډول (کل فاعل مرفوع )یعنی هرفاعل به رفع لری، داپه ټوله عربي ژبه کی شتون لری برعکس داسی نه ده لکه دانګلیسی ژبې ګرامرچې په ټوټو دی اویوه لوی بنسټ نلری، داځکه چې دلته په انګلیسي ژبه کې چې دهرې ژبې توری استعمالیږی دهغې ژبې داصولواوګرامر مطابق په انګلیسي ژبه کې هم استعمالیږی؛ چې دااحقرراتلونکی کتاب (په انګلیسي ژبه کې تلفظ )درسره وګوری چې ډیرژربه چاپ شی انشآء الله.

حافظ محمد خراساني

# رنګ او ترنګ

ويل کيږي چې په وروستي وخت کې د زياتو انکشافاتو او بدلونونوله امله به په عام ژوند او چاپېريال کې په ځانګړې موضوع کې د علم د درلودلو په نسبت به معلومات درلودل او د نوې ټيکنالوژۍ د استعمال زده کړه ډېر زيات ضروري او ګټور تماميږي

د همدې ضرورت او اړتيا له کبله به هغه کسان چې په ځانګړي علم کې پوره وارد وي او نور معلومات يې صفر وي، هغوی به په عام ژوند کې له سختو کړاوونو او ستونزو سره مخ شي.

د بېلګې په توګه، له کمپيوټر او موبائل څخه په مکمله استفاده نشي کولای، په پيش رفته د کانونو يا بانک کې موجود ماشينونو څخه به ګټه نشي پورته کولای، همداسې په زرګونو آلات دي، چې له هغوی څخه به کار نشي اخستلای په هوايي ډګر، بانک، دفتر او لفټ کې به پر مختګ په خپل مټ نشي کولای، بلکې بل همکار ته به سترګې په لار وي، په همداسې توګه د معلوماتو د نشت والي له امله به په بازار کې موجود ډېر شيزونه چې هغه د صحت لپاره تاواني وي، يا يې ظرفيت او قوت کم وي، خو د معلوماتو د نيستي له امله يې خلک استعمالوي او په لوی لاس ځاني او مالي تاوان سره ځان مخ کوي

په دنيا کې هيڅ وګړی په خپلې بې عقلي اقرار نه کوي، ځکه خو ويل کيږي، چې د عقل وړې نشته، انګريزانو بدبختانو د نوې ټېکنالوژۍ او معلوماتو په مټ داسې کارونه تر سره کړو، چې ګڼ کسان يې په غير مرئي توګه په خپلو لومو کې را ګېر کړو.

په افغانستان او پاکستان کې به تاسو ليدلي وي چې د شيدو (ملک پيک) د ډبې په څېر د ترنګ په نوم ډبې هم اکثر کسان د شيدو په نوم اخلي او په خلاص مټ ترېنه استفاده کوي، په خپله يې هم څکې، ميلمنو ته يې هم وړاندي کوي او که چيرته د ماشوم د مور پی کمي وي، نو وړوکې معصوم ماشوم ته يې هم ورکوي، ولي ځان بيا ښه هوښيار او پوه هم ګڼي. خو د معلوماتو او علم د نيستي له امله هيڅوک هم دا فکر نه کوي، چې دا به شودې نه وي، د ترنګ کمپنی ورسره دوکه نه کوي، هغوی ورته نوم داسې وضع کړی، چې په هيڅ صورت کې په شيدو دلالت نه کوي. ترنګ يعني تر رنګ (مائع رنګ)، په ډبې يې ښکاره ليکلي دي Liquid Tea Whitener يعني د چای مائع سپينوونکی، خوا کې ورسره ليکلي چې ماشومانو ته يې مه ورکوئ.




خو زموږ تعليم يافته او غير تعليم يافته ځوانان ترنګ په ډېر شوق د شيدو په ځای استعمالوي، په درځنونو ډبې هره ورځ خپل کور ته وړي، په لوی لاس ځان په بلا اخته کوي، که ډاکټر ورته له شودو سره د درملو خوړلو وينا وکړي دوی يې له ترنګ سره خوري. خپلو هغه اطفالو ته يې د شيدو په ځای ورکوي چې خوراک نشي کولای او بيا وايي هم چې والله ترنګ ډيرې ښې شودې دي، ښې ټينګې دي، ښه خوند لري، ځيني خو لا وايي چې والله سمه نشه لري.

اوس تاسو فکر وکړئ، چې دا د چا ګناه ده، ګناه که د هر چا ده، خو تاوان يې اخستونکي ته رسي، پيسې پرې د هغه ځي، که اخستونکی يې يواځې د رنګ په ځای استعمالوې، بيا خو اجازه ده او کنه بيا ولې په ناخبري کې د شيدو پر ځای مائع رنګ کارول کيږي، د هغې پر ځای خو دې خوراکې رنګ رانيسي او بو ته دې ور واچوي او نر غوندي دې نوش جان کړي. دا خو هسې يوه بېلګه وه، همداسې په زرګونو شيزونه موجود دي چې خلک په ناخبري کې له تاوان سره مخ کوي، له دې څخه دا خبره جوته شوه، چې په اوس زمانه کې عامه معلومات درلودل او نوې ټيکنالوژي باندې پوهيدل ډېر زيات اړين او ضروري دي، د نه پوهيدا په صورت کې به سړی له ګڼو ستونزو او ربړو سره مخ کيږي.

# خبر او غبرګون

خبير احمد

خبر : کرزی ، افغان طالبان دې بهرنيان پرېنږدې چې افغانستان وران کړي"

څرک : له تيرو ١٢ کلونوراهيسي چې امريکااوناټوپه افغان ولس زرګونوخروارونه بمونه ډرون حملې اوډول ډول توغندي وورول دوی لکه چې بهرنيان نه درته بريښي ؟

خبر : کابل چارواکي ، ايراني ځواکونه د افغانستان او ايران د ګډې پولې ننبې ورانوي

څرک : هغه دستراتيژيک تړون بادار خوموهم څه وخت دمخه وويل چې دافغانستان دپولوساتنه ددوی دنده نده ، نواوس فريادچاته کوی ؟

خبر : بشري سازمان : په بلخ کې ناموسي وژنې او پر ښځو جنسي تېري زيات شوي

څرک : دکابل رژيم دبلخ اوسني والي ته هم چې وګوري داسې ښکارې چې دهمدغې مافيا په سراوبيخ کې به اورمروځای ولري ، که څه هم ځان دجهادعلمبردار ! بولي خو دفساداوامريکايي بربنډ کلچردودې لپاره هغه خپله دوه لويشتې ژيره په صفرودروله ،

خبر : يوې افغانې پوليسې امريکايي سلاکار وواژه

څرک : چاچې دلته راکتلي په کاږه نظردسترګو . مونږ پوښلي هغه سترګي دخنجروپه جاموکې

خبر : اروزګان کې د ځانګړو امريکايي ځواکونو يوه افسر ځانوژنه کړې

څرک : چې راغلئ يرغلګردی کوم مهال زمونږ هيوادته – روغ له مونږه تللي ندی دلښکروپه جاموکې

خبر : جلال اباد کې د فساد ضد مشاعره وشوه

څرک : دفساداوسنی جرړي دومره هم سطحي اوساده ندي چې مشاعرې يې دارودرمل شي ، ترهغوچې دحق لښکرې نه وي ور کوزي شوي

خبر : ولسي جرګه : هغه کسان دې محاکمه شي چې د سره يرغل پر مهال يې افغانان وژلي

څرک : سمه ده اول يې له ولسي جرګي شروع کړی ځکه هلته خوهم ډيري ثوکی له همدغوقاتلينوډکې دي اوناځوانو ! دادامريکايي يرغل افغان تاليځتې اوقاتلين موولې له ياده وويستل !!

خبر : د سفيرانوپه ګډون ٤٠ سلنه افغان ديپلوماتان په بهر کې سياسي پناه اخلي

څرک : خبره ټوله دځم ځم ده . دنامرادو کډې بارولاړې دينه

خبر : د بلخ يو اوسېدونکی د بېوزلۍ له امله خپل زوی پلوري

څرک : دکرغيړنې ډمکراسی يانې له تيرو ١٢ کالوورانديې دافغانستان په تاريخ کې ثوک دغسې پيښه نشي موندلای ، خوامريکايي يرغل په افغانستان کې هره نادوده دودکړه

خبر : په کابل کې بېځايه شوي کډوال په منفي لس درجې سړو کې ژوند کوي

څرک : دمفسدوچارواکويې پرې څه ، هغوی په لوکسوبلندمنزلو اوهريويې دميلون ډالرپه ارزښت بلډنګونوکې اوسي

خبر : دبانک عمومي ريس : دکندوز . بدخشان په لويه لار د افغان ملي بانک سلګونه زره ډالر غلا شوي

څرک : ريس صاحب ! داسې ښکاري چې ستاپه شمول به ان مارشال صاحب هم پکې غښتلی لاس لري

خبر : په امريکاکې د کوچنيانو له پاره د مرمۍ ضد کالي جوړيږي

څرک : دا هم دامريکادامن اوډاډ يوه ژوندی مثال ، امريکايانوچې په عراق ،افغانستان ، پاکستان اوفلسطين کې مسلمان کوچنيان شهيدانول اويايې کورونه پرې ړنګول اوس دې دخپلوکوچنيانوانجام اوبدوضعيت په پرانيستوسترګووګوري

خبر : محور : د امريکا متحده ايالتونه که د افغان مجرمينو د پناه ځای

څرک : ، الجنس مع الجنس اميل وانسب

خبر : دحصارک اربکيان : د دولت په ملاتړ مو پاڅون وکړ ، خو دولت مو پوښتنه نه کوي))

څرک : ځان لړ نورهم ټينګ کړی دامودرسوايي ړومبی مرحله ده

# په ۲۰۱۲ کال کې جهادي لاسته راوړنو ته ځغلنده کتنه

ترتیب: عبدالرؤف "حکمت"

۲۰۱۲ کال دافغانستان په وروستیو کلونو کې یو له پیښو او پرمختیاوو ډک کال وو ، په قوي باور ویلی شوچې ۲۰۱۲ کال د افغانستان داوسنیو اشغالګرو لپاره کټ مټ داسې کال وو لکه دشوروي یرغلګرو لپاره ۱۹۸۶ میلادي کال چې په اوږدو کې دیرغلګرو جګړه ایزه اراده په بشپړه توګه وځپل شوه ، او عملا شاګرځ او تیښتې ته اړ ایستل شول.

د ۲۰۱۲ کال دټولو پیښو احتوا شاید دیوې لیکنې له حوصلې لوړه خبره وي ، خو بیا هم کوښښ کوو چې په دې کرښو کې دکال مهم پوځي ، سیاسي، فرهنګي او اجتماعي جریانات راونغاړو.

**لومړی : جهادي ډګر**

دجهادي عملیاتو له اړخه ۲۰۱۲ کال دپخوا په نسبت بیساري وو ، چې په دې حقیقت خپله دښمن هم اعتراف درلود ، د۲۰۱۲ کال دجون دمیاشتې په ۲۲ مه نیټه دامریکا معتبرې ورځپاڼې وال سټریټ ژورنال دامریکایي مقاماتو په استناد ولیکل ، چې په ۲۰۱۲ کال کې دپخوا په نسبت دمجاهدینو دبریدونو ګراف ۲۱ فیصده لوړ شوی دی ، دورځپاڼې داعتراف مخې دهمدې کال په مې میاشت کې مجاهدینو په یرغلګرو ۳ زره بیلابیلې حملې ترسره کړې دي ، په یوه ورته اعتراف کې د ۲۰۱۲ کال دجولای په ۱۷ مه درژیم ددفاع وزارت ویاند وویل چې د

طالبانو حملې دپخوا په نسبت ۴۰ فیصده زیاتې شوې دي ، دحملو دزیاتیدو له امله په دې کال کې دیرغلګرو او اجیرانو تلفات هم ترپخوا په مراتبو زیات وو ، په دې اړه دجون دمیاشتې په ۲۲ مه نیټه حامد کرزي دپارلمان په غونډه کې دوینا په مهال اعتراف وکړ چې هره ورځ دطالبانو په بریدونو کې په اوسط ډول له ۲۰ تر ۲۵ عسکر وژل کیږي ، که دحامد کرزي داعتراف له مخې یې وشمیرو نود ۲۵ ضرب ۳۶۰ = ۹۰۰۰ نتیجې له مخې د رژیم دتلفاتو شمیر زرګونو ته رسیږي نو ځکه د ۲۰۱۲ کال دپوځي تلفاتو په اړه درژیم ددفاع وزارت هغه تازه ادعا پرځای نه ده چې خپل پوځي تلفات ئې باندې زر تنه ښیي ، ځکه ددفاع وزارت ویاند ظاهر عظیمي دتیر اګست په ۱۷ مه ویلي وو چې یوازې یې دجولای او اګست په میاشتو کې ۲۰۰ تنه داردو عسکر له لاسه ورکړي ، نو آیا اوس به یې دا دعوه معقوله وي چې په پاتې ټول کال ۱۰ میاشتو کې یې یوازې ۴۰ سرتیري له منځه تللي وي، دغه راز دامریکایانو دا ادعاهم نګه دروغ ښکاري چې وایي په ۲۰۱۲ کال کې یې یوازې ۴۰ سرتیري وژل شوي دي ، ځکه دوی په تیر جون کې منلې وه چې دکال په منځنی میاشت مې کې ورباندې له ۳۰۰۰ حملې شوې وې ، که چیرې دامریکایانو همدغه اعتراف دمجاهدینو دحملو لپاره اوسط وټاکو ، نو په درست کال کې دمجاهدینو دحملو شمیز ۳۶۰۰۰ حملو ته رسیږي ، او دې ته په پام سره یوازې د ۴۰۰ امریکایي عسکرو وژل کېدل دا معنی ورکوي

چې د طالبانو په ۹ حملو کې یوازې (۱) امریکایي عسکر وژل شوی دی ، چې ښايي دغه سرچپه او دروغجنه ادعاء هیڅ انساني عقل هم ونه مني.

په ۲۰۱۲ کال کې د طالبانو جهادي عملیات په ورځنیو عملیاتو (کنټرولیدونکو چاودنو ، کمینونو ، توغندویي بریدونو او تعرضونو) سربېره له سترو استشهادي او تهاجمي عملیاتو ، نفوذي بریدونو ، دهوایي ځواک ضد بریدونو او چریکي عملیاتو څخه عبارت وو ، چې دلته ورته په لنډو اشاره کوو.

### دهوایي ځواک ضد بریدونه

۲۰۱۲ کال په افغانستان کې دامریکا دهوایي ځواک ، چورلکو او بې پیلوټه الوتکو لپاره یو خورا زیانمنوونکی کال وو په دې کال کې په لومړي ځل دامریکا ۱۱ جنګي الوتکې له منځه لاړې چې ۹ یې د سپتمبر په ۱۲ مه د هلمند دشوراب په اډه د برید په وخت تخریب او زیانمنې شوې او دوه نورې یې د بګرام په اډه په توغندویي بریدونو کې له منځه لاړې چې دامریکا د لوی درستیز مارټین ډیمپسي ځانګړې الوتکه هم په کې وه ، په دې سربېره په دې کال کې دافغانستان په مختلفو ولایاتو کې دخارجي او داخلي ځواکونو ۲۹ چورلکې دمجاهدینو په بیلابیلو بریدونو کې له منځه تللې ، د دې چورلکو ډېر شمیر رانسکورې شوې او دګوتو په شمیر یې په ځمکه ناستې له منځه وړل شوې دي ، لکه داکتوبر په ۱۸ نیټه چې د پکتیا په زرمت کې په امریکایي اډه د برید په مهال دوه په ځمکه ناستې امریکایي چورلکې هم داور خوراک شوې ، باید ووایو چې دغورځیدلو چورلکو دسقوط زیاتره پیښې د دښمن لخوا منل شوې خو یو شمیر نورې یې له څرګندو شواهدو سره سره یا نه دي منل شوې او یا یې سقوط ته دبیړنۍ ناستې یا تخنیکي ستونزې پرده وراغوستل شوې ده ، دبیلګې په توګه د سپتمبر په ۵ نیټه دلوګر مرکز ته نږدې یوه ځي چورلکه مجاهدینو وویشتله او اور یې واخیست ، په داسې حال کې چې دالوتکې دسوزیدلو او له منځه تللو ویډیو په انټرنیټ پاڼو کې خپره شوه ، خو دفاع وزارت د چورلکې ویشتل کیدل نه منل ، او هغه یې یوازې یوه بیړنۍ ناسته او عادي پیښه بلله.

دغه راز د ۲۰۱۲ کال په اوږدو کې د افغانستان په بیلابیلو سیمو کې ۱۲ بې پیلوټه الوتکې هم دمجاهدینو لخوا رانسکورې شوې دي.

### ستر او څېرساز عملیات

په ورځنیو عادي جهادي عملیاتو سربېره تیر کال مجاهدینو ځینې ستر تلفات اړونکي او پیغام لیږدوونکي عملیات هم ترسره کړل ، چې له دې جملې د جنورۍ په ۳ مه په کندهار کې په پولیسي او سرحدي ځواک دوه پله پسې استشهادي عملیات ، دمارچ په ۵ مه دکندهار په هوایي ډګر استشهادي برید ، داپریل په ۱۵ مه په کابل کې درې ځایه دغه راز په ننګرهار ، لوګر او پکتیا کې هم مهال د ۳۰ تنو فدایانو ستر او همآهنګ برید چې ۲۴ ساعته یې دوام وکړ ، دجون په لومړۍ دخوست دصحراباغ په سالیرنو کمپ د ۱۰ تنو فدایانو ستر هجومي عملیات چې ترسلو ډېر خارجي عسکر یې مړه او ټپیان کړل ، په همدې میاشت کې دکندهار په ښار ، سپین بولدک او شاولیکوټ کې په امریکایي مراکزو ستر عملیات ، دجون په ۷ مه دسرپل په محبس برید او دبندیانو ازادول ، د جون په ۹ مه دکاپیسا په تګاب او نجراب کې په فرانسویانو زیان اړونکي بریدونه ، دجون په ۲۱ مه په خوست کې په ګډو ځواکونو استشهادي برید ، دجون په ۲۲ مه دکابل په قرغه کې په سپوږمۍ هوټل کې په مهمو دولتي کسانو دفدایانو برید ، داګست په ۷ مه دلوګر دخدر په قرارګاه دموټر بم په واسطه ستر برید ، داګست په ۲۱ نیټه په بګرام اډه کې دامریکایي لوی درستیز مارټین ډیمپسي دالوتکې له منځه وړل ، داګست په ۲۸ مه دکندهار په امنیه قومندان او سرحدي ځواک په مشر جنرال رازق بریالی موټربم برید ، دسپتمبر په ۱۲ دهلمند په شوراب کې په باسټین کمپ باندې د ۱۵ تنو فدایانو هیښوونکی برید ، دسپتمبر په ۲۹ مه دبدخشان په وردوج کې دمجاهدینو بریالي عملیات او د ۲۲ عسکرو ژوندي نیول ، داکتوبر په ۱۵ مه دپروان په شیخ علي ولسوالۍ کې دحامد کرزي په مرستیال

کریم خلیلي باندې برید ، داکتوبر په۱۸ مه دپکتیا په زرمت کې دامریکایانو په ستره قرارگاه دموټر بم ستر برید ، داکتوبر په۲۷ دپروان په بگرام کې دامریکایي اکمالاتي شرکت سوپریم گروپ دگودامونو په بشپړ ډول له منځه وړل ، دنومبر په ۲۱ دکابل وزیراکبر خان کې په امریکایي استخباراتي مرکز فدایي برید ، دنومبر په۲۳ په میدان ښار کې په پوځي اهدافو ستر فدایي برید ، د دسمبر په۲ مه د جلال اباد په هوایي ډگر دفدایانو ستر عملیات ، د دسمبر اوومه دملي امنیت په مشر اسدالله خالد باندې بریالی فدایي برید ، د دسمبر ۲۲ مه دخوست په زاړه هوایي ډگر کې دسي آی اې په کارکوونکو او اجیرانو استشهادي برید او داسې نورې پیښې دیادولو وړ دي.

## نفوذي بریدونه



هغه عملیات چې سږکال یې دیرغلگرو دعزم او مورال په تابوت وروستۍ میخ ټک واهه ، دیو شمیر نفوذي مجاهدینو عملیات وو ، چې دښمن یې له سختې وارخطایي او ناهیلۍ سره مخامخ کړ، که څه هم دافغان امنیتي لیکو دگډونوالو لخوا څخه له څوکلونو راهیسې په یرغلگرو بریدونه روان وو ، خو سږکال دې عملیاتو ډیر زور واخیست او یرغلگرو ته دمرگ ژوبلې دیوه مهم عامل په توگه وپیژندل شول ، سږکال ددغه ډول پیښو له جملې هغه چې راپورونه یې ورکړل شوي شمیر یې تر ۵۰ زیات دی ، چې په نتیجه کې یې په سلهاوو بهرني عسکر ، پولیس او اربکیان له منځه تللي ، ددې بریدونو وروستۍ پیښه د دسمبر په ۲۴ مه هغه مهال رامنځته شوه کله چې دکابل په امنیه قومندانۍ کې دنرگس په نامه یوې میرمنې امریکایي لوړرتبه سلاکار دتفنگچې په توسط وواژه ، د ۲۰۱۲ کال په ترڅ کې ددښمن په لیکو کې نفوذي عملیات ، ددښمن لپاره دیوه ستر او سرساموونکي خطر په توگه پېژندل کیږي دتیر سبتمبر په ۱۸ نیټه دامریکایي پوځ لوی درستیز دغه بریدونه دخپلو پوځیانو په وړاندې ترټولو ( سخت او جدي تهدید ) بللي وو.

## دیرغلگرو تیښته اودهیواد ازادي

۲۰۱۲ کال که په یوه جمله کې تعریفوو نو ( دیرغلگرو دتیښتې دپیل کال ) ورته ویلی شو ، په دې کال کې دامریکا ۳۰ زره سرتیري دجگړې له تاوده میدانه وتښتیدل ، په دې سربیره فرانسوي عسکرو خپل جنگي ماموریت په بشپړ ډول پای ته ورساوو او ټول محاربوي ځواکونه یې بیرته په راغلې لار لاړل ، بلژیک داگست په ۷ مه خپل ۲۳۰ عسکر وایستل او په دې ډول یې دتیښتې بهیر پیل کړ ، نیوزیلنډ هیواد هم له هغه وروسته دخپلو عسکرو دژر ایستلو خبره وکړه چې کله په بامیانو کې ورباندې بریدونه وشول ، دغه راز دبرتانیې دفاع وزیر هم هلمند ته دسفر په مهال وویل چې ډیر ژر به خپل ځواکونه له افغانستانه وباسي.

په ۲۰۱۲ کال کې بهرنیان تقریبا دافغانستان په ټولو ولایاتو کې له زیات شمیر قرارگاوو څخه وتښتیدل ، دوی رسما دخپلو ۴۰۰ مهمو قرارگاوو پریښودل ومنل خو دپریښودل شویو قرارگاوو شمیر له دې څو برابره زیات دی ، ځکه امریکایانو یوازې دهلمند په مارجه ولسوالۍ کې تر ۹۰ ډیرې قرارگاوې پرې ایښې دي ، دشمال او مرکزي افغانستان په ولایاتو کې امریکایانو خپل حضور یوازې مراکزو ته رامحدود کړی دی او په ولسوالیو کې له لسگونو قرارگاوو تښتیدلي، دوی دخپل دې شکست او تیښتې لپاره داوړو دپوزې میندلو په خاطر په زیاترو شمالي او مرکزي ولایاتو کې دمسؤلیت دانتقال په نامه تبلیغاتي بهیر پیل کړ چې په څو څو پړاوونو کې ترسره شو او لا هم تکراریږي ، په

حقیقت کې امریکایان غواړي له افغانستان څخه په داسې ډول پښې سپکې کړي لکه له ویتنام څخه چې وتلي وو ، په ویتنام کې چې کله امریکایان له یو مخیزې تباهۍ سره مخ شول نو بې د ( بریا اعلان کړه او راتښته ) فارموله وکاروله ، دوی په دې ډول غواړي دلته د ( مسؤلیت ورو سپاره او تښته ) فارموله عملي کاندي. باید ووایو چې دامریکایي عسکرو تېښته دهیوادوالو لپاره یو ښه زیری دی ځکه دا شغال دلمنې په ټولیدو سره په اتومات ډول دهیواد سیمې خپلواکه کیږي او داولس له سره دیرغل سیوری لرې کیږي.

په پای کې باید یاده کړو چې دمجاهدینو لوړې ټولې بریاوې یوازې دالهي نصرت او مهربانۍ نتیجه بللی شو ، ځکه دنړۍ دداسې سترو او خونخوارو طاقتونو په وړاندې دتش لاس افغان اولس داسې ښکاره بریاوې له الهي نصرت پرته په بل څه سره نه شي تحقق موندلی ، د ۲۰۱۲ کال په لړ کې داسلامي امارت دنظامي کمیسیون مسؤلانه او مدبرانه فعالیت او دمجاهدینو بې دریغه قربانۍ دالهي نصرت په سیوري کې په دې منتجې شوې ، چې دنړۍ دجابرو قدرتونو په وړاندې جهادي عملیات په ښه توګه جریان پیدا کړي ، دنظامي کمیسیون دنورو فعالیتونو ترڅنګ یو مهم او دپاموړ فعالیت دهیواد ټولو سیمو او ولایاتو ته دځانګړو هیئتونو لیږل او دجهادي جبهو کلک مراقبت ، اکمال او رهبري کول وو ، چې نتیجه یې خورا ښکاره او دتقدیر وړ وه.

### فرهنګي او نشراتي ډګر

۲۰۱۲ کال داسلامي امارت لپاره په مطبوعاتي او اعلامي برخه کې هم یو له بریاوو ډک کال وو ، ددې کال په ترخ کې داسلامي امارت فرهنګي کمیسیون خپله هغه شپېته فقره ایزه کلنۍ پرمختیایي کړنلاره په بریا سره تطبیق کړه ، چې د ۲۰۱۲ کال لپاره یې ټاکلې وه ، په عادي فعالیتونو سربېره ددې انکشافي فعالیت ترسره کول بې له شکه یوه څرګنده بریا او نغده لاسته راوړنه بلل کېدای شي.

داسلامي امارت داعلامي تمثیل ( ویاندۍ ) ، انټرنیټ ، چاپي مطبوعاتو ، اژانس ، ویډیو ، آنلاین راډیو ، تالیف او ترجمې ، تاریخ لیکنې ، تیلفوني پیغامونو ، توزیع او دچارو دمدیریت په شمول په ټولو برخو کې دفرهنګي کمیسیون کارونه ، په پوره نظم او نسق او بې له کوم څرګند بن بست څخه روان وو.

په دې ټولو برخو کې که څه هم مشکلات او موانع ډېر وو ، خو دفرهنګي مجاهدینو اخلاص او نه ستړې کېدونکې فعالیت ددې لامل ګرځید ، چې خپل فعالیت په مؤثره توګه جاري وساتي.



په عادي چاپي نشراتي فعالیت ( دالصمود ، څرک ، شهامت او مورچل مجلو په میاشتني چاپ ) سربېره په تېر کال کې فرهنګي کمیسیون دشریعت په نامه میاشتنۍ مجله هم پیل کړه ، چې بې له وقفې هره میاشت چاپیږي ، الصمود ، څرک ، شهامت او مورچل مجلې دهرکله په نسبت په ښه محتوا ، ډیزاین او صحافت سره بلاناغه ترمینوالو رسول کېدلې ، په دې مجلو کې نه یوازې هیوادني مهم مسائل او جهادي جریانات څېړل کېدل ، بلکې علمي ، معلوماتي ، ادبي او ذوقي برخې یې هم دپام وړ اود لوستونکو لپاره په زړه پورې وې ، څرنګه چې په عادي شرایطو کې دیوې مجلې چلول ، خورا ستره او ملاماتوونکې خواري غواړي ، نو په نامساعدو او انقلابي شرایطو کې دپنځو میاشتنیو مجلو په بریا سره چلول دا معنی لري چې دفرهنګي کمیسیون دچاپي نشراتو دبرخو مسؤلینو خورا ډېرکار ته اوږه ورکړې ، او دمسلکي کار او اخلاص په برکت یې سترې لاسته راوړنې

ترلاسه کړې دي دغه راز تېر کال د تالیف او ترجمې د څانګې په فعالیت سره څو کتابونه چاپ شول ، او زرده چې نور هم د چاپ په ګڼه و پسولل شي ، د تاریخ څانګه د بشري ځواک له کمښت سره سره وتوانېده چې د اسلامي امارت د تاریخ لیکلو لپاره د پام وړ اندازه او مه مواد (معلومات) راغونډ کړي ، دغه راز د تیر یو ولس کلن جهاد د پیښو یو لنډ غورچاڼ هم په کتابي بڼه راټول کړي چې په نږدې راتلونکې کې به چاپ شي

، د انټرنیټ په برخه کې د الاماره ویب پاڼې ( چې په اصل کې له پنځو ژبو ، اسلام ، مجلې ، ویډیوګانې ، ترانې او الصمود نه جوړ مجموعا ۱۰ سایټونه دي ) مستمر فعالیت یو له سترو بریاوو څخه وو ، ځکه په تیر کال کې د ښمن خپل ټول وس وکاروو او له بیلابیلو حربو ، یرغلونو او وسیلو په استفاده یې هڅه وکړه چې الاماره ویب پاڼه په بشپړ ډول بنده کړي ، خو د پاڼې د تخنیکي ملګرو ستړیاوې ، هڅې او مسلکي کار ددې باعث شو چې د دښمن ټولې هڅې په اوبو لاهو شي او الاماره ویب پاڼه له ټولو ازمېښتونو بریالۍ راووزي ، داچې د ویب سایټ چلولو او ویاندۍ په برخه کې ملګري له کومو ستونزو سره مخ وو ، او د دښمن د یرغلونو په مقابل کې یې څنګه استقامت کړی په دې اړه به وروسته هم رڼا واچوو ، تېر کال د الاماره ویب پاڼې د پنځو واړو ژبو په خبري برخه کې د کارکوونکو مسؤلانه کار هم یو له مهمو نشراتي فعالیتونو څخه وو د خبري برخو ویښ او تکړه خبرلیکوونکي وتوانیدل چې درست کال په ورځني ډول د جهادي عملیاتو سره همګام خپل مطبوعاتي فعالیت جاري او روان وساتي ، د هر جهادي برید خبر په حداقل وخت کې په پنځو ژبو د نړۍ ګوټ ګوټ ته ورسوي ، د سایټ په برخه کې یوه بله لاسته راوړنه په نسبتا پرمختللي پروګرام کې د الاماره نوې ویب پاڼې جوړول ، ډیزاین او د تیرو موادو اپلوډ وو چې په تیر کال کې یې کار ترسره شو ، او ډیر زر به د مینوالو په وړاندې د موجوده ویب پاڼې په ځای په لیکه شي

د انټرنیټ په برخه کې بل فعالیت په ټولنیزو شبکو کې مؤثر فعالیت وو ، په فیسبوک سربیره تیر کال په ټویټر شبکه کې هم د ملګرو فعالیت خورا د پام وړ او مؤثر وو ، د ذبیح الله مجاهد ، قاري یوسف احمدي ، الاماره وېب ، طارق غزنیوال ، عبدالقهار بلخي ، خراساني په نومونو د مشهورو اکاونټونو سربیره په نورو ډیرو نومونو او پنځوژبو په ټویټر کې فعالیت روان وو ، تردې چې د مجاهدینو د دې فعالیت له امله امریکایي لوړپوړي مقامات دې ته مجبور شول چې په ټویټر شبکه رسما فشار وارد کړي چې د طالبانو اکاونټونه له منځه یوسي ، په ۲۰۱۲/۸/۳۰ نیټه د امریکا یو ایس اې ټوډې ویب پاڼې ولیکل چې د امریکایي پوځ مشرتابه له ټویټر شبکې غوښتي چې د طالبانو اکاونټونه وتړي ، ځکه هغوی د خپلو بریاوو په اړه راپورونه نشروي او دوی پرته له دې چې اکاونټونه یې وتړي په بله طریقه ورسره مقابله نه شي کولای ، دغه راز په ۲۰۱۲/۱۲/۲۵ نیټه ټیلګراف پاڼې ولیکل چې د امریکا د سنا مجلس د داخلي امنیت د کمیټې مشر له ټویټر څخه غوښتي چې د طالبانو اکاونټونه بند کړي ، ځکه د دوی په خبره طالبان د خپلو فعالیتونو په اړه ډیر زر او خورا دقیق خبرونه له دې لارې نشر ته سپاري.

د ویډیو په برخه کې د اسلامي امارت ( الاماره ، الهجرت او منبع الجهاد ) سټوډیوګانو تېر کال ګڼ شمیر اصدارات درلودل ، چې ځینې اصدارونه یې نورو ژبو ته ترجمه او نړیوال شهرت یې وموند ، په دې اصداراتو کې د مجاهدینو د بریدونو ، ښاري اشتشهادي عملیاتو ، کمینونو ، د دښمن د مظالمو او د نفوذي مجاهدینو د کارنامو په اړه په زړه پورې ویډیوګانې شاملې وې ، چې د فرهنګي کمیسیون د ویډیو د برخې کارکوونکو په خورا جالب او مسلکي ډول ترمینوالو ورسولې.

په دې سربیره د مسیجي خبرونو په برخه کې فعالیت هم د تیر کال په اوږدو کې د پام وړ پیشرفت وکړ ، او د افغانستان او سیمې په لراو برکې د لسګونو زره افغانانو شمارې د تیلفوني خبرونو لست ته شاملې شوې ، چې په ورځني شکل ورته خبرونه استول کیدل.

ځرنګه چې په تیرو کلونو کې دفرهنګي کمیسیون دنشراتو دتوزیع په برخه کې مشکلات موجود وو تیرکال په دې برخه کې هم دپام وړ اصلاحي ګامونه واخیستل شول او شته ستونزې له منځه لاړې.

## انټرنیټي یرغلونه ، سانسور او په وړاندې یې مقاومت

۲۰۱۲ کال که له یوې خوا داسلامي امارت په آنلاین خپرونو ددښمن دجاسوسي کړیو ، اجرتي هکرانو او متعصبو انټرنیټي غلو دبریدونو کال وو ، له بلې خوا داسلامي امارت دویاندویانو دفعالیت په وړاندې هم ددښمن لخوا خورا ډیر مشکلات ایجادیدل ، او په داخلي او باندنیو رسنیو باندې د دولتي سانسور ګراف ترټولو وروستي حد ته رسیدلی وو.

داسلامي امارت ویندویان قاري محمد یوسف احمدي او ذبیح الله مجاهد وایي ، چې په تیرکال کې یې په بیا بیا له ټیلفوني نمبر څخه غلطه استفاده شوې ، هغه داچې دوی به خبر هم نه وو خو له تیلفوني نمبر څخه به یې خبریالانو ته غلط پیغامونه استول شوي وو ، په دې پیغامونو کې به ددښمن لخوا لیکل شوي وو چې دطالبانو مشرتابه اوربند کوي ، یا له خپلو مجاهدینو غواړي چې عملیات کم کړي ، یا نورې نادودې تبلیغاتي خبرې ، ددا ډول پیښو دمکررا واقع کیدو له امله داسلامي امارت ویاندویان اړ شول چې خبریالانو ته ووایي چې دتیلفوني مسیج له لارې دوی ته یوازې دورځنیو جهادي پیښو خبرونه استول کیږي ، اعلامیې او رسمي بیانونه ورته دایمیل له لارې او یاهم په غږ کې ابلاغیږي ، دغه راز ویاندویانو له ځینو خبریالانو سره په مسیج کې ځانګړي شفر په نښه کړ ، ترڅو داصلي او جعلي مسیج ترمنځ توپیر وکړای شي ، ددا ډول هڅو په کارولو سره بالاخره خبریالان هم پوه شول ، او دښمن دکومې نتیجې د نه ترلاسه کولو له امله مایوس شو ، نوځکه یې له دا ډول کړنو لاس واخیست.

داسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد وایي چې ددښمن یوه بله هڅه دا وه چې کوښښ یې کاوو دویاندانو ټیلفونونه مصروف وساتي ، ترڅو له خبریالانو سره وړباندې خبرې ونه کړای شي ، ددې لپاره به د ویاندویانو ټیلفون ته دوامداره زنګونه وهل کیدل ، چې دیوه له قطع کیدو وروسته به سمدستي بل پیل شو ، ددښمن دا هڅه دجولای په ټوله میاشت کې روانه وه ، چې اکثر به دکومې پیښې دواقع کیدو په مهال وه ، خو ددې لپاره بالاخره داسې حل پیدا شو چې داسلامي امارت ویاند دیوه په ځای څو نمبر استعمال کړل ، چې ددښمن به کوم نمبر هدف وو ویاند به دهغه په عوض په بل نمبر له رسنیو سره رابطه نیوله ، خو چې کله به دښمن دغه نوی نمبر کشف کړ او هدف به یې وګرځاوو ویاند به بیرته زاړه یا بل نمبر ته مراجعه وکړه ، چې په دې توګه ددوی هڅې بې ځایه تلې او د ویاند دمستعمل نمبر موندل او مصروف ساتل ورته یو ناشونی کار وګرځید ، نوځکه یې بالاخره دا دسیسه هم شنډه شوه.

دښاغلي مجاهد دوینا له مخې تېر کال په هیوادنۍ او نړیواله کچه دافغانستان دپیښو اړوند په رسنیو امریکایي او حکومتي کنترول او سانسور هم بیساری وو ، خبریالانو ته ترهغو دخبر دنشر اجازه نه وه ترڅو به یې چې دخارجي یاداخلي چارواکو عکس العمل نه وو اخیستی ، په دې لړ کې په پکتیا او لوګر او ځینو نورو سیمو کې داسې هم پیښ شول چې سیمیزو خبریالانو دپیښو دصحنو او امریکایي تلفاتو عیني مشاهده وکړه او له امریکایي تلفاتو یې عکسونه واخیستل خو داچې له پورته خوا ورته دنشر اجازه نه وه نو حقائق همداسې پټ پاته شول ، دغه راز په تیرکال کې ددښمن ځینو اجیرو نړیوالو او کورنیو رسنیو داسلامي امارت دویاندانو په نمایندګۍ جعلي او دروغجنې مرکې هم نشر کړې ، چې په دې لړ کې د ډیلي بیست او کابل چاپ خدمتګار ورځپاڼې دروغجنې دیاد وړ دي ، چې ددښمن ددا ډول ټولو تبلیغاتو هڅو په مقابل کې مجاهدین په بشپړ ډول بیدار وو او هره دسیسه یې ډیر زر، رسوا کوله او شنډوله.

په تیرکال کې د دښمن یوه بله دمطبوعاتي اخلاقو ضد هڅه او د بیان له ازادۍ نه ښکاره سرغړونه د اسلامي امارت په رسمي ویب پاڼه الاماره سایټ باندې د دښمن بریدونه وو ، د پاڼې تخنیکي مسؤل ډاکټر غزنیوال وایي چې د کال په اوږدو کې په اوسط ډول هره ورځ یو ځل په الاماره سایټ برید شوی ، دغه راز داسې هم شوي چې په ورځ کې په مکرر ډول بریدونه او د پاڼې د تخریب هڅې شوي وي.

دهمدې مکررو بریدونو له امله د الاماره سایټ مسؤلین مجبور وو چې پاڼه په مستمره توګه ترڅارنې لاندې وساتي او ساتنې ته یې بیدار وي ، تخنیکي مسؤلین اړ وو چې د موادو د ساتنې لپاره هره ورځ د پاڼې بیک آپ واخلي ، احتیاطي سرورونه ولري ، او د وقایوي تدابیرو په دود پرمختللي او پرمصرفه پروګرامونه وکاروي.

په ټوله کې د پاڼې تخنیک کارانو هراړخیزې هڅې کولې چې پاڼه انلاین وساتي ، خو څرنګه چې د دښمن بریدونه خورا ستر او په مسلکي ډول طراحي شوي وو ځکه کله ناکله داسې هم پیښیدل چې د څو شیبو لپاره پاڼه بنده شي

د الاماره ویب پاڼې د تخنیکي برخې د موندنو په اساس په تیرکال کې په الاماره ویب پاڼه بریدونه کوم عادي بریدونه نه وو ، بلکې د احملې د امریکا د مرکزي استخباراتو د اداري ( CIA ) لخوا پلان شوې منظمې او دلوړې کچې حملې وې ، ددې حملو په لړ کې داسې هم پیښ شوي چې له ۱۲ زره آی پي ګانو څخه په یوه وخت په پاڼه بریدونه شوي وي ، دغه راز له زرګونو ځانګړو کمپیوټرونو څخه په استفاده ددې هڅه شوې وې چې پاڼه درنه کړي ترڅو بل چاته خلاصه نه شي ، معلومه خبره ده چې د یوې پاڼې په خلاف په دومره لوړه کچه فعالیت د عادي هکرانو له وسه وتلې خبره ده.

د الاماره ویب پاڼې د مسؤلینو په وینا په دې لړ کې نه یوازې په الاماره ویب پاڼه بریدونه شوي بلکې د امریکایي استخباراتو او امنیتي کړیو لخوا په انټرنیټ کې د ویب سا یټو نو لپاره په قیمت سره ځای ورکونکي هغه کمپنۍ هم تهدید شوي دي ، چې الاماره ویب پاڼې ته یې ځای ورکړی وو ، په دې لړ کې په کاناډا ، ایران ، امریکا ، هسپانیا ، سویډن او نوروګنو هیوادونو کې انټرنیټي کمپنۍ په دې مجبوره شوې چې الاماره سایټ ته له ځای ورکولو لاس واخلي ، دغه کمپنۍ ډیر ځله په بندولو او آن عدلي تعقیب تهدید شوي دي.

لکه څنګه چې په پوځي برخه کې د افغانستان روانه جګړه خورا نامتوازنه ده خو بیا هم برې د تش لاسو مجاهدینو دی د آنلاین جګړې په برخه کې هم کیسه کټ مټ همداسې ده ، د اسلامي امارت د ویب سایټ په خلاف دنړۍ تر ټولو ستر او مسلکي هکران او تخریبي شبکې له هرډول بشري او تخنیکي ځواک او پرمختللیو وسائلو سره په فعالیت بوخت دي خو په وړاندې یې د مجاهدینو بشري ځواک نسبتا کم او وسائل محدود دي ، خو بیا هم د الهي نصرت په برکت مجاهدین توانیدلي چې خپل آنلاین فعالیت جاري وساتي.

**مولانا جلال الدین محمد بلخی**

**آن لعل سخن که جان دهد مرجان را**
**بی رنگ چه رنگ بخشد اومرجان را**

**مایه بخشد مشعلهٔ ایمان را**
**بسیار بگفتیم ونگفتیم آن را**

---

**با محمد بود عشق پاک جفت**
**بهر عشق او خدا «لولاک» گفت**

**گر نبودی بحر عشق پاک را**
**کي وجودی دادمي افلاک را**

**من بر آن افراشتم چرخ سنی**
**تا علو عشق رافهمی کنی**

# دعرفان لمنه

" حمدي "

ضمیرمې په لاسونو دعرفان لمنې نیسې
ادراک ستا معرفت ته دفیضان لمنې نیسي

ژوندی پاییږي روح مې ستادنوم په یادولو
رنځورحس مې علاج ته د درمان لمنې نیسي

بقامې دوجودخاونده ستا دکرم رازدی
نجات ته مې اُمید ستااداحسان لمنې نیسي

تسل مې له ډېرخوفه درجاء په تورو وشي
مدام دمودو تږي دباران لمنې نیسي

چې څوک دچاله ببرې پنایوسي کوم دربارته
په ډېرمنت زاریو د دربار لمنې نیسي

ارتیانشته خبرته چې خپل حال ورته بیان کړ
" حمدي " په چوپه خوله دنګهبان لمنې نیسي